


د پوهنې وزارت

# رياضي

## دويم ټولګی

۵ = ۵

۴ > ۳　　٦ < ٧

۵ = ۳ + ۲　　۵ - ۳ = ۲

۴ = ۱ × ۴　　۴ ÷ ۴ = ۱










د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ . ش.



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، ګوجر دي — پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان
دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مودی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم




د پوهنې وزارت

# رياضي

## دویم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** ریاضي

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د ریاضي د دیپارتمنت د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** دویم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

## لړلیک

گڼه | مخ

# لومړی فصل

## له (۱-۱۰۰) پورې د عددونو شمېرل او ترتیب کول

### لومړی لوست

### د عدد مفهوم

هدف: د عددونو د شمېرلو، لوستلو اولیکلو پیاوړتیا.

| ٠ | ١ | ٢ | ٣ | ۴ | ۵ | ۶ | ٧ | ٨ | ٩ | ١٠ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| صفر | یو | دوه | درې | څلور | پنځه | شپږ | اووه | اته | نه | لس |


______


______


______


______

په لاندې هرچوکاټ کې څو شکلونه دي؟



______ هندوانې
______ منې



______ کتابونه
______ پنسلونه



______ څوکۍ ګانې
______ توپونه

**لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:**

۱- کوم ډول مېوه زیاته ده؟ هندوانې منې.

۲-کوم یو یې لږ دي؟ پنسلونه توپونه.

۳- کوم یو یې ډیر زیات دي؟ څوکۍ ګانې کتابونه منې

۴- کوم یو یې ډیر زیات دي؟ کتابونه څوکۍ ګانې پنسلونه

۵- ستاسو په ټولګي کې څو نجونې دي؟ ______

٦- ستاسو په ټولګي کې څو هلکان دي؟ ______

٧- کوم یو یې له هغو څخه لږ شمېر لري؟ نجونې هلکان

### کورنۍ دنده

۱– د لاندې چوکاټ په سپینه برخه کې د رسم شوو شکلونو په ډول لږ شکلونه پــه خپلــو کتابچو کې رسم کړئ او ووایاست چې ټول څو شکلونه دي؟



۲– د چوکاټ په سپینه برخه کې د درکړل شوو شکلونو څخه زیات شمېر رسم کړئ، هغــه ټول حساب کړئ او شمېر یې ویې لیکئ.



۳– د چوکاټ په سپینه برخه کې د درکړل شوو شکلونو سره مساوي شمېر شکلونه په خپلــو کتابچو کې رسم کړئ. ټول حساب او ولیکئ.



۴– د خپلې خوښې یو شکل چې له ٦ څخه زیات، خو له ۱۰ څخه لږ وي په خپلو کتابچو کې رسم کړئ.

## دویم لوست

### متناوب شمېرل ( دوه، دوه، پنځه، پنځه.... زیاتول)

هدف: په دې لوست کې زده کوونکي باید متناوب شمېرل زده کړي.

**لومړی فعالیت:** د خپلو ټولګیوالو له سترګو څخه په کار اخیستوسره ۲،۲ عدد زیات کړئ او عددونه یې ولیکئ.



۲ ۴ ٦ ___ ___ ___ ___ ___ ___



ټولې___ سترګې ___ ___ ___ ___

**دویم فعالیت:** د خپلو ټولګیوالود لاس ګوتو د ۵ په زیـــاتولو سره عددونه په لاس راوړئ او ویې لیکئ.

ټولې... ګوتې



۵ ۱۰ ۱۵ ___ ___ ___

**دریم فعالیت:** له ښي خوا څخه کیڼ لوري ته کوم عددونه چې پاتې دي په تشو ځایونوکې يې ولیکئ.

۱- ۲، ____، ____، ۵، ٦

۲- ۰، ____، ۲، ____، ۴

۳- ۴، ۵، ___، ۷، ____

۴- ۲، ۴، ___، ___، ۱۰

۵- ۱، ۳، ___، ۷، ____

٦- ۰، ۳،___، ____

**څلورم فعالیت:** له کیڼې خواڅخه ښي لوري ته تش ځایونه د مناسبو عددونو په واسطه ډک کړئ.

۱. ۵، ۴، ___، ۲، ___،

۲. ۱۰، ۹، ۸، ___، ___، ___، _____، ۴

۳. ___، ٦، ۵، ____، ۳

۴. ۱۲، ۱۰، ____، ٦، ____، ۲

۵. ۱۱، ۹، ___، ۵، ____، ۱

٦. ___ ۱۰، ۷، ۴، ____

**کورنۍ دنده**

**دلاندې عددونو جدول خپلو کتابچوته نقل او د حل شوي مثال نه په کار اخیســـتو سره پوښتنه حل او رنگ کړئ.**

**د عددونه جدول**

| ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ٥ | ٦ | ٧ | ٨ | ٩ | ١٠ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ١١ | ١٢ | ١٣ | ١٤ | ١٥ | ١٦ | ١٧ | ١٨ | ١٩ | ٢٠ |
| ٢١ | ٢٢ | ٢٣ | ٢٤ | ٢٥ | ٢٦ | ٢٧ | ٢٨ | ٢٩ | ٣٠ |
| ٣١ | ٣٢ | ٣٣ | ٣٤ | ٣٥ | ٣٦ | ٣٧ | ٣٨ | ٣٩ | ٤٠ |
| ٤١ | ٤٢ | ٤٣ | ٤٤ | ٤٥ | ٤٦ | ٤٧ | ٤٨ | ٤٩ | ٥٠ |
| ٥١ | ٥٢ | ٥٣ | ٥٤ | ٥٥ | ٥٦ | ٥٧ | ٥٨ | ٥٩ | ٦٠ |
| ٦١ | ٦٢ | ٦٣ | ٦٤ | ٦٥ | ٦٦ | ٦٧ | ٦٨ | ٦٩ | ٧٠ |
| ٧١ | ٧٢ | ٧٣ | ٧٤ | ٧٥ | ٧٦ | ٧٧ | ٧٨ | ٧٩ | ٨٠ |
| ٨١ | ٨٢ | ٨٣ | ٨٤ | ٨٥ | ٨٦ | ٨٧ | ٨٨ | ٨٩ | ٩٠ |
| ٩١ | ٩٢ | ٩٣ | ٩٤ | ٩٥ | ٩٦ | ٩٧ | ٩٨ | ٩٩ | ١٠٠ |

# دریم لوست

## د عدد د مفهوم تمرین

هدف: زده کوونکي به د عدد د مفهوم تمرین وکوالي شي.

**لومړی فعالیت: حل شوي مثال ته په پاملرنه سره د هرلیـــک ښـــي خواته یو عدد لیکل شوی دی د هغه په شمېر دایرې رنګه کـــړئ او د هغو دایرو شمېر چې رنګ شوې نه دي کیڼ خواته ولیکئ.**

| ۳ | ۷ |
| --- | --- |
| ۹ | |
| ۴ | |
| ٦ | |

**دویم فعالیت: حل شوي مثال ته په پاملرنه د هرې کرښې ښي خواته یو عدد لیکل شوی دی د هغه په شمېر شکلونه رنګه کړئ او د هغو شکلونو شمېر چې رنګ شوي نه دي کیڼې خواته ولیکئ.**

| ۸ | ۲ |
| --- | --- |
| ۱ | |
| ۷ | |
| ۲ | |
| ۰ | |
| ۳ | |
| ۵ | |

## کورنۍ دنده

له شیانو څخه د لس ګونو ګروپونو جوړول شمېرل آسانه کوي او دا یو ډول تفریح ده.

له شیانو څخه لس ګونه ګروپونه جلا اوکړښه ورڅخه تاو کړئ، تش ځایونه ډک کړئ او پوښتنو ته ځواب وواياست.



____ لسيز او ____ یویز ____ کېږي



____ لسيز او______ یویز _____ کېږي





____ لسيز او ____ یویز چرګان ____ چرګان کېږي.

____ لسيز او ____ یویز پیشوګان ______ پیشوګاني کېږي.

کوم ګروپ زیات دی؟ چرګان که پیشوګاني

څومره زیات دي؟ ________

## څلورم لوست

# تر ۱۰۰ پورې د عددونو ترتیب او پرتله کول

هدف: زده کوونکی په ډیر او لږ عددونه وپیژني او د هغو له مخې ترتیب(پرله پسي توب)وکولای شي.

**لومړی فعالیت:** شکلونو ته گورئ، وروسته د هر یو شمیر په خپلو کتابچو کې ولیکئ، هر هغه عدد چې له ۱۴ څخه کوچنی دی تر شاوخوا یې یوه مربع رسم کړئ.



**دویم فعالیت:** لاندې شکلونوته وگورئ د هغو د هر یوه شمېر په خپلو کتابچو کې ولیکئ او هر هغه عدد چې له ۱۵ څخه زیات دی، دایره ترې تاوه کړئ.



**دریم فعالیت:** پورته شکلونو ته په دقت سره و گورئ او ووایئ چې

۱–له آسونوڅخه څوهیلۍ زیاتې دي؟ ———

۲– له هیلیو څخه څو وزې کمې دي؟ ———

۳–د وزی شمیر زیات دی که د آسانو؟ څومره زیات دي؟

خلورم فعالیت:

په پنځه کیسزو ډلو تقسیم شئ هر گروپ یا ډلې ته دعدد یو شمېر کارتونه چې له صفر څخه تر ۲۰ پورې ور باندې لیکل شوې دي ورکول کېږي.

۱- په وار سره کار وکړئ.

۲- هر زده کوونکی دې له کڅوړې څخه یو کارت راوباسي.

۳- هر ډله دې عددونه له ډېرو لږو څخه تر لوی عدد پورې ترتیب کړي.

۴- د هر دور عدد په جدول کې (یاد داښت) کړئ.

د عددونو کارتونه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لومړی دور | | | | | |
| دویم دور | | | | | |
| دریم دور | | | | | |

په وروستي جدول کې چې په مخکي فعالیت کې مو ترتیب کړی و، ولیکي. وروسته لاندې سوالونو ته ځواب ورکړئ.

۱- په هره دوره کې له ۱۳ څخه څو عددونه لوی دي؟

۲- د ټولو هغو عددونو نه چې له ۱۱څخه کوچني دي کرښه تاوکړئ.

۳- ټول هغه عددونه چې له ١٦ څخه لوی دي ورڅخه یوه مربع تاوه کړئ.

۴- آیا ټول عددونه له ١٦ څخه لږ دي؟

۵- له ١٦ څخه زیات او لږ عددونه په جلا جلا توگه ولیکئ.

# پنځم لوست

## تر ۱۰۰ پورې د عددونو ترتیب

هدف: زده کوونکي په عددونه دمقامي قیمت په درلودلو سره په پرله پسې توګه ترتیب کړای شي.

عددونه چې په جدول کې لیکل شوي نه دي تر ۱۰۰ پورې بشپړ کړئ.

د عددونو جدول

| ۱ | ۲ | | | | | | ۸ | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | ۱۴ | | ۱٦ | | | | |
| | ۲۲ | | | | | | | | ۳۰ |
| | | ۳۳ | | | | ۳۷ | | | |
| | | | | | | ۴۷ | | ۴۹ | |
| | | ۵۳ | | ۵۵ | | | | | |
| | ٦۲ | | | | | | | ٦۹ | |
| | | | ۷۴ | ۷۵ | | | | | |
| ۸۱ | | | | | ۸٦ | | | | |
| | | | | | | | ۹۸ | | ۱۰۰ |

لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست.

۱- کوم عدد له ۳۵ څخه د یوه په اندازه زیات دی؟ ______

کوم عدد له ۳۵ څخه د یوه په اندازه لږ دی؟ ______

۲- کوم عدد له ۲۷ څخه د دوو په اندازه زیات دی؟ ______

کوم عدد له ۲۷ څخه د دوو په اندازه لږ دی؟ ______

۳- کوم عدد له ۵۰ څخه د لسو واحدو په اندازه زیات دی؟ ______

کوم عدد له ۵۰ څخه د لسو واحدو په اندازه لږ دی؟ ______

۴- کوم عدد له ۷۰ څخه د شلو واحدو په اندازه زیات دی؟ ______

کوم عدد له ۷۰ څخه د شلو واحدو په اندازه لږ دی؟ ______

۵- په تشو ځایونو کې د (> یا <) مناسبه نښه ولیکئ.

۹۳ (>) ۹۷   ۴۷ ◯ ۳۵   ۲۳ ◯ ۷۷   ٦۸ ◯ ۸۲

## شپږم لوست

### د متناوب شمېرلو مشق او تمرین

هدف: زده کوونکي به په آسانۍ سره وکولای شي د دوه، دوه، درې، درې عددونه زیات کړي او د یوه، یوه عددونو په زیاتولو بسنه ونه کړي.



۲۴



۲۵



۲٦

لومړی فعالیت: په دوه کسیزو ډلو کې د عددونو خالي ځایونه د کوچنیو کاڼو په شمیر لو سره په مناسبو عددونو سره ډک کړئ.

۱– ۳۰، ۳۱، ۳۲     ٦۵، ٦٦ ـــــ     ـــــ، ۱۳، ۱۴

۲– ـــــ، ۴٦، ۴۷     ۷۱، ـــــ، ۷۳     ۸۳، ۸۴، ـــــ

۳– ۹٦، ۹۷، ـــــ     ـــــ، ۲۸، ۲۹     ۵۸، ۵۹، ـــــ

دویم فعالیت: په مخکنیو ډلو کې دې لومړی زده کوونکي عددونه په متناوب ډول « ۲، ۴، ٦، ۸، ....» ولري. دویم زده کوونکی دې د عددونو په جدول کــې پــه لوستل شوو عددونو باندې کوچني کاڼي کېږدي. د۳، ۴، ۵ او نورو په زیـاتولو سره د متناوب شمېر عددونو فعالیت تکرار او سرته ورسوئ.

---

دریم فعالیت: د لاندې لارښود په کارولو سره غوښتل شوی عدد پیداکړئ.

لومړی لارښوونه: غوښتل شوی عدد د ۱۰ او ۸۰ په منځ کې دی.

۲دویم لارښوونه: غوښتل شوی عدد یوله لاندې عددونو څخه دی.

۱۳، ۳۰، ۲۳، ۸۰، ۸۳، ٦۷، ۵۲

۳دریم لارښوونه: غوښتل شوی عدد له ۵۵ څخه لږ کم دی.

څلورم لارښوونه: کوم وخت چې تاسو له صفر (۰) څخه پیل کوئ د لــس، لــس پــه زیاتولو سره د غوښتل شوي عدد نوم اخلئ. غوښتل شوي عــدد لــه ـــــــ څخــه عبارت دی.

## اووم لوست

### مخکې، وروسته، منځ کې، زيات، لږ

هدف: په دې لوست کې مخکې به زده کوونکي د يوه عدد په مخ کې او وروسته عددونه ولري.

د ۵ کتارونو کتابونو رسم چې د ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱ او ۲۲ عددونه د هغو کتارونه راښيي. ... ...

۱۹ د ۲۰ څخه مخ کې راځي. ... ...

۱۹ د۱۸ او ۲۰ په منځ کې دی. ... ...

۱۹ د۱۸ څخه وروسته راځي. ... ...

۱۹ له ۱۸ څخه زيات دی. ... ...

۱۹ له ۱۸ څخه لږ دی.

### لومړی فعاليت

جوړه جوړه کار وکړئ پوښتنوته ځوابونه ووایاست.

۱– هغه عدد وليکئ چې مخکې راځي.







۲– هغه عدد وليکئ چې وروسته راځي.







۳– هغه عدد وليکئ چې په منځ کې راځي.







دويم فعاليت: د لاندې ترتيب شوو عددونو په اړه په پورتني چوکاټ کې د کارول شوو مثالونو نه په ګټې اخيستو سره خبرې اترې وکړئ.



لاندې عددي خط په نظرکې ونیسئ او هرې پوښتنې ته ځواب ووایاست:




**۱–هغه عدد چې له ۷۲ څخه مخکې دی ترې لاندې خط وکاږئ.**

**۲– له هغه عدد نه دایره راتاو کړئ چې له ۷۹ څخه وروسته دی.**

**۳– دهغه عدد له شاوخوا نه خط تاوکړئ چې د ۷۴ او ۷۵ په منځ کې دی.**

**۴.په ټولو هغو عددونو باندې د (×) نښه کېږدی چې د ۷۵ او۸۰ په منځ کې دی.**

**دریم فعالیت: لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:**

**۱. له ٤٦ څخه مخ کې کوم یو عدد دی؟**

**۲. کوم یو عدد د ۳۷ او ۳۹ په منځ کې دی؟**

**۳. هغه عدد چې له ۵۵ څخه وروسته راځي کوم دی؟**

**۴.کوم عدد د یوه په اندازه له ۹۴ څخه مخ کې دی؟**

**څلورم فعالیت:** ښوونکی دې یو عدد پر تختې ولیکي او د (مخ کې)، (وروسته)، (منځ کې)، (زیات)، او (لږ) په ډول کلمې دې وکاروي،ترڅو وکولای شي دعددونو په هکله خبرې وکړي.

**کورنۍ دنده**

**لاندې معما حل کړئ.**

**زه د ۳۸ او ۴۲ په منځ کې یم.**

**زه درې لسیزې لرم.**

**زه څوم نمره یم؟ ———**



## اتم لوست

### توصيفي(ترتيبي) عددونه

هدف: زده کوونکي به پوه شي چې لومړی دويم، دريم... د يوه شي مقام او منزلت راښيي.

لومړی فعاليت: تر ۱۰ پورې ترتيبي عددونه استعمالوو، ترڅو د شيانو حالت او مقام څرګند کړي.


اول


دويم


دريم


څلورم


پنځم


شپږم


اووم


اتم


نهم


لسم

دويم فعاليت: که چېرې يوه بله خزنده ورسره جمع کړئ خزنده به په کوم مقام کې وي؟






















۱ . پنځم موټر په سره رنګ، رنګ کړئ.
۲.نهم موټر ته شين رنګ ورکړئ.
۳.شپږم موټر ته ژيړ رنګ ورکړئ.
۴.اووم موټر ته نصواري رنګ ورکړئ.
۵.دريم موټر ته آبي رنګ ورکړئ.
٦. د شپږم موټر مخې ته څو موټرونه دي؟
۷.د څلورم موټر نه مخکې څو موټرونه دي؟
۸.د پنځم موټر څخه وروسته څو موټرونه دي؟

# دویم فصل

## له (۱–۱۰۰) پورې د عددونو مقامي قیمت او عملیې

### نهم لوست

### د مقامي قیمت مفهوم

هدف: زده کوونکي باید په مرتبو کې درقم په ارزښت پوه شي.

لومړی فعالیت: له لاندې شکلونو څخه د لسیزو بنډلونه جلا کـــړئ او د هغو بنډلونو ترشاوخوا خط وکاږئ. بیا اړوند عددونه د جدول د یـــویزو او لسیزو په خانو کې ولیکئ. د مثال څخه پیروي وکړئ.

| یویز | لسیز |
|---|---|
| ۴ | ۲ |

دویم فعالیت: پورته حل شوی مثال په پام کې ونیسئ. توپونه وشمېرئ، په خپلو کتابچو کې د لسیز او یویز جدول رسم کړئ او اړونده عدد یې ولیکئ.

| یویز | لسیز |
|---|---|
| | |

**دريم فعاليت:** د شکلونو له مخې جدولونه بشپړ کړئ.



| لسيز | يويز |
|---|---|
| | |



| لسيز | يويز |
|---|---|
| | |



| لسيز | يويز |
|---|---|
| | |



| لسيز | يويز |
|---|---|
| | |

## کورنۍ دنده

په خپلو کتابچوکې وليکئ چې په لاندې دوه رقمي عددونو کې څـــو يويز او څو لسيز دي؟

| | | | |
|---|---|---|---|
| ٢٦ | ٣١ | ٦٢ | ٨٢ |
| ٣٨ | ۴٩ | ٧۴ | ٩٠ |
| ۵١ | ۵٧ | ٨٠ | ٩٩ |

لسم لوست

## تر ۹۹ پورې د عددونو جمع اوتفریق

هدف: زده کوونکي به د دوه رقمي عددونه يوله بله سره جمع کړي او هم به له دوه رقمي عدد څخه دوه رقمي عدد تفريق کړای شي.

لومړی فعاليت: لاندې حل شوی مثال په نظر کې ونيسئ. دوه رقمي پوښتنې يوله بله سره جمع کړئ.

۱۲ چوغکې په يوې ونې کې ناستې وې. ۲۴ چوغکې نورې له هغوی سره يوځای شوې. په ونه کې ټولې څو چوغکې دي د ۲۴ زيـــاتوالي پـــه ۱۲ باندې داسې ليکلای شو.

| | | |
|---|---|---|
| ۱ ۲ | ◄........................ | د جمعې لومړی جز |
| + ۲ ۴ | ◄........................ | د جمعې دويم جز |
| ۳ ٦ | ◄........................ | د جمعې حاصل |

د شکل له مخې د جمعې اجزاوې او د جمعې حاصل معرفي کړئ، د هغـــوی عددې افاده وليکئ او همدارنګه درکړل شوې پوښتنې جمع کړئ.

۱۳+۱۰=۲۳



| | | |
|---|---|---|
| ۳۱<br>+ ۱۵ | ۴۰<br>+ ۳۸ | ۴۷<br>+ ۲۰ |
| ۶۳<br>+ ۱۵ | ۷۴<br>+ ۲۵ | ۸۰<br>+ ۱۶ |

**کورنۍ دنده**

**د دې عملیو د جمعې حاصل په خپلو کتابچو کې ولیکئ، د جمعې اجزاوې او د جمعې حاصل معرفي کړئ.**

**۱− ۱۴ + ۲۱ = ______ ۲− ۱۳ + ۲٦ = ______**

**۳− ۱۸ + ۲۰ = ______ ۴− ۱۷ + ۲۲ = ______**

**۵− ۲۱ + ۲۷ = ______ ٦− ۲۲ + ۲۳ = ______**

**عبارتي سوالونه: زرمینې په خپل جېب کې ۱۴ افغانۍ درلودې او مـــور یـــې د ښوونځي د بکسې لپاره ۲۱ افغانۍ نورې ورکړې، اوس زرمینه څو افغانۍ لري؟**

**حل:**

$$\begin{array}{r} ۲۱ \\ + \quad ۱۴ \\ \hline ۳۵ \end{array}$$

**تاسو ددویمې ګڼې پوښتنې لپاره یوه عبارتي کیسه جوړه کړئ او حل یې کړئ.**

## يوولسم لوست

# د جمعې په عمليې کې د بدلون قانون

هدف: زده کوونکي به پوه شي که چېرې د جمعې د اجزاؤ ځايونه بدلون ومومي د جمعې حاصل به بدلون نه کوي.

لومړی فعاليت: که چيرې دعددونو د جمعې کولو په وخـــت کــې د عـــددونو ځايونه سره بدل کړو د هغو د جمعې په حاصل کې کـــوم بـــدلون نـــه راځـــي. دځايونو دا بدلون په جمع کې د بدلون د خاصيت په نامه يادېږي.

$$\begin{array}{r} ۵ \\ +\ ۴ \\ \hline ۹ \end{array} \qquad \begin{array}{r} ۴ \\ +\ ۵ \\ \hline ۹ \end{array}$$

۵ + ۴ = ۹

۴ + ۵ = ۹

دويم فعاليت: عددي جملې په دوه طريقو وليکئ.

$$\begin{array}{r} ۲ \\ +\ ۳ \\ \hline ۵ \end{array} \qquad \begin{array}{r} \square \\ +\ \square \\ \hline \square \end{array}$$

___ + ___ = ___

___ + ___ = ___

**دریم فعالیت: عددي جملې ولیکئ:**

**۱. ۷ هلکان د پتنگ الوزونې لوبې کوي.**

**۵ نور هلکان له هغوی سره یوځای شول.**

**ټول څو هلکان د پتنگ الوزونې لوبې کوي؟**

**هلکان ——— = ——— + ———**

**۲. ۵ هلکان د غرمې ډوډۍ خوري، ۷ هلکان نور له هغوی سره یوځای شول. ټول څو هلکان دي چې د غرمې ډوډۍ خوري.**

**هلکان ——— = ——— + ———**

**څلورم فعالیت: تش ځایونه په مناسبو عددونو سره ډک کړئ. د جمعې د اجزاؤ د هرې جوړې د جمعې حاصل یوله بله سره پرتله کړئ او وواياست چې څه توپیر وینئ؟**

**۱–گڼې بدلون:**

**۱۸ = ——— + ۶**

**۱۸ = ——— + ۱۲**

**۲– گڼې بدلون:**

**۴۲ = ——— + ۳۲**

**۴۲ = ——— + ۱۰**

| □ | □ | □ | □ |
|---|---|---|---|
| + □ | + □ | + □ | + □ |
| □ | □ | □ | □ |

**د ۳ شمیرې بدلون**

۸۵ = ___ + ۷۲

۸۵ = ___ + ۱۳

**د ۴ شمیرې بدلون**

۷۸ = ___ + ۵۴

۷۸ = ___ + ۲۴

## کورنۍ دنده

**لاندې هر یوه شکل ته عددي جمله ولیکئ.**

۱.



___ = ___ + ___

۲.



___ = ___ + ___

که چیرې یو عدد له بل عدد څخه کوچنی یا لوی وي، د لوري په بدلون سره ( > ) علامه په لاندې ډول ښودل کیږي

( ٦ > ٥ )

( ٧ < ٨ )

په لاندې مثالونو کې د جهت (لوري) په بدلون سره د علامې (>) کارولو ته دعددونو په جمع کې پاملرنه وکړئ.

مثال –

٨ + ٩   □   ٨ + ٧

١٧   >   ١٥

لومړی فعالیت: د پورته مثال څخه په کار اخستنې سره د لاندې پوښتنو په تشو ځایونو کې مناسب عددونه اویا د <، > نښې ولیکئ.

| | |
|---|---|
| ٢٩ + □ > ١٢ + ٣٥ | ٢٥ + ١۴ □ ١٢ + ٣٠ |
| ٣٨ + □ < ٢٥ + ٣٢ | ٢٠ + ٣٧ □ ۴٠ + ١٨ |
| □ + ٣٢ > ٣٢ + □ | ۴٥ + ٢٣ □ ٣٣ + ٢٢ |

# دولسم لوست

## د جمعې د دريو جزو جمع کول

**هدف:** زده کونکي به د جمعې پوښتنې چې درې جزء ولري جمع کړای شي.

تاسو کولای شئ چې دوه عددونه سره جمع کړئ اوس راځئ چې درې عددونه سره جمع کړو.

موږ کولای شو دا عددونه په کوم ډول چې غواړو سره جمع کړو. د جمع کولو لپاره عددونه گروپ کوو.

د مثال په توگه:

۲ + ۴ + ۵ = ۱۱ ← ۶ + ۵ = ۱۱

۲ + ۴ + ۵ = ۱۱ ← ۷ + ۴ = ۱۱

۲ + ۴ + ۵ = ۱۱ ← ۹ + ۲ = ۱۱

لومړی کوم دوه عددونه جمع کوو؟ ولې؟

په دې تمرين کې لومړی هغه دوه عددونه وټاکئ چې يوله بله سره يې جمع کوئ. د جمعې حاصل يې وليکئ بيا وروسته د جمعې حاصل له دريم عدد سره جمع کړئ.

۳ + ۵ + ۳ = ۱۱ ← ☐ + ☐ = ۱۱

۷ + ۱ + ۳ = ۱۱ ← ☐ + ☐ = ۱۱

۴ + ۶ + ۱ = ۱۱ ← ☐ + ☐ = ۱۱

**فعاليت:** زده کوونکي په دوو ډلو ويشل شئ هره زده کوونکي ته د کارتونو يوه قوطی چې له (۱ – ۹) عددونه وي، ورکړئ، وروسته هر زده کوونکی خپل کارت نورو ته ښيي.
زده کوونکي دې له خپلو کارتونو څخه درې دوه رقمي تشکيل کړي په خپله خوښـه دې ددوو عددونو مجموعه پيدا کړي. وروسته دې لاسته راغل حاصل له دريم عدد سره جمع کړي.

## کورنۍ دنده

لاندې سوالونه په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

۲۴
۳۲
+ ۱۲
______

۱۷
۳۱
+ ۵۱
______

۵۱
۱۶
+ ۲۲
______

۴۲
۲۲
+ ۳۲
______

۰
۲۴
+ ۳۵
______

۱۵
۳۳
+ ۲۱
______

۲۱ +۱۲ + ۲۳ = ______

۱۲ +۲۵ + ۳۱ = ______

# دیارلسم لوست

## تفریق

هدف: د تفریق د عملیې د اجراء کولو تقویت (د همجنسو گروپونو جلاء کول).

لومړی فعالیت: له شکلونو څخه کار واخلئ گروپونه جلا کړئ او عددي جملې یې ولیکئ، د مثال په توگه: په یوه ونه کې ۸ چوغکې ناستې دي. له هغې ونې څخه ۲ چوغکې والوتلې. اوس په ونه کې څو چوغکې پاتې شوي؟



۸ − ۲ = ۶

اوس لیدل کېږي چې په ونه کې ۶ چوغکې پاتې دي چې دا ۶ د فرق یا د تفریق د حاصل په نامه یادېږي.

دویم فعالیت: له یوه ساتونکي سره ۱۵ بایسکلونه شته دي. ۹ بایسکلونه خپلو خاوندانو یوړل، څو بایسکلونه پاتې دي؟

بایسکلونه ______ = ______ − ________

دریم فعالیت: ۱۸ د پنسل قلمونه پر مېز پراته دي. ۸ پنسلونه یې زده کوونکو واخیستل، څو پنسلونه پاتې کېږي؟

پنسلونه ______ = ______ − ________

**ځلورم فعالیت: ۲۵ هلکان مسابقه لري، ۱۴ تنو یې تفریح وکړه، څو تنه یې دمسابقې په حالت کې دي؟**

**هلکان ——— = ——— − ———**

**پنځم فعالیت: د لاندې پوښتنو په تشو ځایونوکې د <، > یا = مناسبه نښه ولیکئ.**

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۲۵ − ۱۱ | ☐ | ۲۸ − ۷ | ۳۸ − ۱۴ | ☐ | ۱۵ − ۰ |
| ۴۴ − ۲۳ | ☐ | ۵۵ − ۴۱ | ۵۱ − ۳۰ | ☐ | ۲۷ − ۱۶ |
| ۶۰ − ۳۰ | ☐ | ۷۰ − ۴۰ | ۳۲ − ۲۲ | ☐ | ۴۷ − ۱۵ |

## کورنۍ دنده

**لاندې پوښتنې تفریق کړئ.**

**۱ − ۱۶ − ۷ = ———**

**۲ − ۲۳ − ۹ = ———**

**۲ − ۲۸ − ——— = ۱۳**

**۴− ——— − ۹ = ۱۳**

## څوارلسم لوست

### د تفریق عبارتي پوښتنې

هدف: زده کوونکي به له کیسو او عبارت څخه مفهوم واخیستلای شي او هم دریاضي افاده ولیکلای شي.

**لومړی فعالیت: عبارتي پوښتنې ولولئ او حل یې کړئ اوپه ګډه کار وکړئ.**

۱. په لومړي مېز باندې ۱۷ قلمونه دي په دوهم مېز باندې ۱۴ قلمونه دي.

په لومړي مېزباندې څو دانې قلمونه زیات دي؟

قلمونه ______

۲. په لومړۍ الماری کې ۲٦ کاچوغې شته او په دویمه الماری کې ۱۵

په شمېر کاچوغې شته.

په لومړۍ الماری کې څو دانې کاچوغې زیاتې شتون لري؟

______ کاچوغې زیاتې دي.

**دویم فعالیت: عددي جملې یې ولیکئ او حل یې کړئ.**

مثال: حمید ۳۹ کوترې او جمیلې ۲۵ کوترې لیدلې دي.

حمید څو کوترې زیاتې لیدلې دي؟

کوترې ۱۴ = ۲۵ − ۳۹

۱. حمید ۳۸ دانې منې او زرغونه ۱۳ دانې منې لري.

حمید څو دانې منې زیاتې لري؟

منې ___ = ___ − ___

۲. ملالۍ ۲۰ چوغکې او ګلالۍ ۱٦ چوغکې لیدلې دي.

ملالۍ څو چوغکې زیاتې لیدلې دي؟

چوغکې ___ = ___ − ___

دریم فعالیت: د خپل گروپ سره کار وکړئ. له وړو تیرو یا عــددي خــط څخه کار واخلئ.

۱- لطیفې ۱۰ پنسلونه په کوټه کې کېښودل او یوشمېر پنسلونه نورهم په کوټه کې وو چې ټول ۱۲ پنسلونه کېږي وواياست چې مخ کــې په کوټې کې څو پنسلونه وو؟

______ پنسلونه

۲- ننگيالي د اوبو ۱۳ جکونه کور ته راوړل چې په کور کې ټول د اوبو ۱۶ جکونه شول وواياست چې ترمخه په کورکې څو جکونه وو؟

______ جکونه

۳- خالد ۵ دانې شیریني لري او سلیمه ۳ دانې شیریني، خالد څو دانـــې شیریني گانې سلیمې ته ورکړې، اوس د هغوی ددواړود شیریني گانو شمېر مساوي دی، وواياست چې خالد به څو دانې شـــریني گـــانې سلیمې ته ورکړې وي.

______ دانې شریني گانې

**کورنۍ دنده**

د څمکې پر مخ ۴ سطلونه دي هر سطل ۱۲ دانې ډبرې لري وواياست چې په هغه ځای کې سطلونه ډېر دي اوکه ډبرې؟

## پنځلسم لوست

# د جمع او تفریق تر منځ اړیکې

هدف: زده کوونکي دې دجمع او تفریق په رابطه باندې پوه شي.

که چېرې د دوو عددونو د جمع له حاصل څخه د جمع یو جز منفي کړو، بل جز د جمع حاصل کیږي که چېرې د تفریق حاصل له مفروق سره جمع کړو، مفروق منه ورکوي.

تاسو۳ کتابونه لرئ. ۴ کتابونه مو نور را ونیول. اوس تاسو څو کتابونه لرئ؟

حل: ۷ کتابونه = ۳ + ۴

تاسو ۴ کتابونه لرئ ۳ کتابونه مو نور را ونیول ټول څو کتابونه لرئ؟

۷ کتابونه = ۴ + ۳

په همدې ډول که چېرې تاسو ۷ کتابونه ولرئ او ۳ کتابونه خپل ملګري ته ورکړئ، اوس به تاسو څو کتابونه ولرئ؟ ۴ کتابونه = ۳ − ۷

اوس تاسو ۷ کتابونه لرئ او ۴ کتابونه موخپل ملګري ته ورکړل، اوس تاسو څو کتابونه لرئ؟ ۳ کتابونه = ۴ − ۷

تاسو د جمعې او تفریق د دوو عملیو په سرته رسولو سره ددواړو عملیو ترمنځ اړیکې وپیژندلې، څرنګه چې ۷=۴+۳ د جمعې یوه عملیه ده او ۳=۴−۷ د تفریق یوه عملیه ده چې په حقیقت کې د جمعې له حاصل څخه د جمعې یوجز تفریق شو او د جمعې بل جز لاس ته راغلی دی.

لومړی فعالیت:په دوه کسیزو ډلو وویشل شئ لاندې عبارتي سوالونه حل کړئ.

۱- احمد ۵ منې درلودې او مریمې ۴ منې احمد ته ورکړې احمد ټولې

څو منې لري؟

منې ___ = ___ + ___

۲- احمد ا و مریمه ۹ منې لري، مریمې خپلې ۴ منې واخیستلې. له

احمد سره څو منې پاتې دي؟

منې ___ = ___ - ______

۳- سارا ۱۳ بکسونه واخیستل او ګلالۍ ۱۴ بکسونه واخیستل، هغوی

ټول څو بکسونه اخیستي دي؟

بکسونه ___ = ___ + ___

**کورنۍ دنده**

په کورکې ۲۷ بکسونو شتون درلود اوشریفې ۱۴ بکسونه له هغو څخه

واخیستل، اوس څو بکسونه پاتې دي؟

بکسونه ___ = ___ - ___

## شپاړسم لوست

### د جفت او تاق عددونو پېژندنه

هدف: زده کوونکي به د جفت او تاق عددونه وپېژني.

د دې مخ ښي خواته ۴ دانې شمعې او ۴ پتنګان دي چې هر پتنګ تـــه يوه شمع رسېږي. يوه شمع اويو پتنګ يوه جوړه جوړوي او يوه جوړه د۲ دعدد په واسطه ښودل کيږي نو د۲ عدد يو جفت عدد دی، دمخ کيڼـــې خواته ۳ پتنګان او۲ شمعې دي. څرنګه چې په شکلونو کې ليدل کېـــږي دوه پتنګان ددوو شمعو په شاوخوا څرخېږي او يو پتنګ يوازې پاتې کېږي، دا يو له بله سره مساوي نه دي (بشپړې جوړې نه جوړوي)، نو د۳ عدد يو تاق عدد دی.



**لومړی فعاليت:** زده کوونکي دې د جفت اوتاق عددونه د يو رقمي عددونو په واسطه، لکه: ۴، ۵، ٦، ۷، ۸، او ۹ د جوړو په جوړولو سره، لکه: يو زده کوونکی او يو کتاب، يو ز ده کوونکی يو قلم، يـــوقلم او يـــوه کتابچه، په ټولګي کې جفت اوتاق عددونه تشخيص اوتوپير کړای شي.

له دې لوست څخه پوهېدلی شو چې د (۲، ۴، ٦ او۸) عددونه جفت عددونه او د (۱، ۳، ۵، ۷ او۹) عددونه تاق عددونه دي.
ټول هغه عددونه چې د یویز رقمونه یې ۰، ۲، ۴، ٦ او۸ وي، جفت عددونه او ټول هغه عددونه چې د یویز رقمونه یې ۱، ۳، ۵، ۷ او۹ وي تاق عددونه بلل کېږي. په همدې ډول تاسې جفت اوتاق عددونه د وړو ډبرو په جوړه کولو سره په ښه توگه لیدلی شئ.

| یوولس وړې ډبرې | لس وړې ډبرې |
| --- | --- |
| موږ کوچنۍ ډبرې په دوو مساوي برخو کتار کولای نه شو<br>نو ۱۱ یو تاق عدد دی. | موږ کوچنۍ ډبرې په دوو مساوي برخو کتار کولای شو<br>نو ۱۰ یو جفت عدد دی. |

دویم فعالیت: کوچنۍ ډبرې وکاروئ او چارټ ډک کړئ.

| | یوکتار د دې کوچنیو ډبرو په اندازه سره جوړ کړئ | آیا دوه مساوي برخې جوړولی شی؟ | جفت عدد، دي اوکه تاق؟ |
| --- | --- | --- | --- |
| ۱ | ۱۲ | هو | **جفت** |
| ۲ | ۱۳ | | |
| ۳ | ۱۴ | | |
| ۴ | ۱۵ | | |
| ۵ | ۱٦ | | |
| ٦ | ۱۷ | | |
| ۷ | ۱۸ | | |
| ۸ | ۱۹ | | |

دریم فعالیت: په لاندې شکلونو کې کوم یو یې جفت اوکوم یو یې تاق دی؟






________ ________ ________ ________

ځلورم فعالیت: جفت او یا تاق عددونه ولیکئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱. ۵۵ تاق | ۲. ۷۳ ______ | ۳. ۴۲ ______ |
| ۴. ۳۴ ______ | ۵. ۱۷ ______ | ۶. ۲٦ ______ |

**کورنۍ دنده**

لومړی درې جفت عددونه ولیکئ، بیا وروسته درې تاق عددونه ولیکئ.

جفت عددونه: ________ ________ ________

تاق عددونه: ________ ________ ________

## تمرین:

۱- له ۷۰، ۴۶،۵۴، ۳۳، ۲۳، ۱۶، ۱۵ عددونو څخه جفت عددونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

۲- له ۷۵، ۶۰، ۴۲، ۳۸، ۲۵، ۲۲، ۱۸ عددونو څخه تاق عددونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

۳- ټول جفت عددونه چې د ۳ او ۱۵ ترمنځ دي ویې‌لیکئ؟

۴- ټول تاق عددونه چې د۶ او۲۲ ترمنځ شته دي ویې لیکئ؟

۵- لاندې جدول په خپلو کتابچو کې په مناسبو عددونو سره ډک کړئ.

| ۵۰ | | | | | | | | ۳۴ | ۳۲ | ۳۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

۶- لاندې جدول خپلو په کتابچوکې په مناسبو عـــددونو سره ډک کړئ.

| ۱۹ | | ۱۵ | | | | | ۵ | ۳ | ۱ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

### کورنۍ دنده

۱ – د ۲۲ او ۴۲ عددونو ترمنځ طاق عددونه ولیکئ.

۲- د ۱۵ او ۴۵ عددونو ترمنځ جفت عددونه ولیکئ.

# دريم فصل

# د دوه رقمي عددونو جمع

## اووه لسم لوست

### له یوه رقمي

### عددونو سره د دوه رقمي عددونو جمع کول (چې حاصل ولري)

هدف: زده کوونکي به دوه رقمي عددونه له یوه رقمي عددونو سره چې حاصل ولري جمع کړای شي.

مثال: غواړو چې ۱٦ عدد د۷ له عدد سره چې حاصل لرونکي دي جمع کړو.



۱٦ + ۷ = ۲۳

پوهېږو چې د۱٦ عدد له ٦ یودانه یي او د لسو یوه بنډل څخه جوړ شوی دی، کله چې ۷ یودانه یي له هغه سره جمع شي د یو دانه یي شمېر ۱۳ کېږي چې د هغو یودانه یي څخه یو د لسي بنډل لاس ته راځي او ۳ یودانه یي پاتې کېږي، په دې ډول د ټولو لرګیو شمېر دوه بنډله د لسیو او درې یودانه یي ته رسېږي. چې د ۲۳ عدد حاصلېږي. څرنګه چې ۳ یو دانه یي د یویزو په مرتبه کې او۲ لسي د لسیزو په مرتبه کې لیکل کېږي، نو له همدې امله ویل کېږي چې د جمعې عملیه حاصل لرونکې ده.




لومړی فعالیت: د پورتني مثال له حل کولو څخه په استفادې سره لاندې پوښتنې جمع کړئ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۵۴ | ۴۵ | ۳۹ | ۲۵ | ۱۷ |
| + ۷ | + ۸ | + ۶ | + ۸ | + ۹ |

**دويم فعاليت:**

**شکلونو ته وګورئ د جمع عمليه مرسته ورسوئ او دهغو له مخې د ليسزو ډله جوړه کړئ او د جمع حاصل لاسته راوړئ.**



+ ______ = ______

______ + ______ = ______



+ ______ = ______

______ + ______ = ______

**کورنی دنده**

لاندې پوښتنې جمع کړئ.

| ۵۷ | ۴۵ | ۳۶ |
|---|---|---|
| + ۳ | + ۹ | + ۷ |

**اتلسم لوست**

## د دوه رقمي عددونو جمع کول له دوه رقمي عددونو سره چې حاصل ولري

هدف: زده کوونکي به دوه رقمي عددونه له دوه رقمي عددونو سره چې حاصل ولري جمع کړای شي.

**لومړی مثال:** غواړو چې د ۱۵ دوه رقمي عدد له ۱٦ دوه رقمي عدد سره جمع کړو، دتېر شوي لوست څخه پوهېږو چې د۱۵ عدد له ۵ یودانه يي او یوه لسي بنډل څخه جوړ شوی دی. په همدې ډول د۱٦ عدد له ٦ یو دانه يي او یوه لسي څخه منځ ته راغلی دی.




دویم مثال:



**د هغه دوه رقمي عددونو مشق او تمرين چې حاصل ولري.**

لومړی یویز سره جمع کړئ. دویم بیا ګروپ (حاصل ونیسي) جوړ کړئ.
دریم لسیز جمع کړئ.

$$\begin{array}{r} 46 \\ +\ 35 \\ \hline \end{array} \qquad \begin{array}{r} \text{(1)} \\ 46 \\ +\ 35 \\ \hline 1 \end{array} \ \text{(11)} \qquad \begin{array}{r} \text{(1)} \\ 46 \\ +\ 35 \\ \hline 81 \end{array}$$

تاسو ولې لومړی یویز سره جمع کوئ؟

د پورته مثال څخه په کار اخستني سره لاندې پوښتنې په حل کړئ.

۱.

| لسیز | یویز |
|---|---|
| ☐ | |
| ۶ | ۳ |
| + ۱ | ۷ |
| | |

| لسیز | یویز |
|---|---|
| ☐ | |
| ۲ | ۷ |
| + ۳ | ۱ |
| | |

| لسیز | یویز |
|---|---|
| ☐ | |
| ۳ | ۹ |
| + ۱ | ۵ |
| | |

| لسیز | یویز |
|---|---|
| ☐ | |
| ۳ | ۷ |
| + ۲ | ۹ |
| | |

۲.

| لسیز | یویز |
|---|---|
| ☐ | |
| ۲ | ۹ |
| + ۶ | ۶ |
| | |

| لسیز | یویز |
|---|---|
| ☐ | |
| ۴ | ۷ |
| + ۱ | ۸ |
| | |

| لسیز | یویز |
|---|---|
| ☐ | |
| ۶ | ۵ |
| + ۲ | ۷ |
| | |

| لسیز | یویز |
|---|---|
| ☐ | |
| ۳ | ۱ |
| + ۲ | ۲ |
| | |

**فعالیت:** په دوه کسیزو ډلو وویشل شئ، لاندې عبارتې سوالونه حل کړئ.

۱- په الماری کې ۱۴ صندوقه شربت دي. یوه سړي ۳۸ نور صندوقه هم په هغه الماری کي کېښودل. اوس په الماری کې د شربت څو صندوقه دي؟

۲- ګلالۍ دوه سفري بکسونه لري چې دروندوالی یې ۳۴ کیلوګرامه دی، په لاندې بکسونو کې د ګلالۍ سفري بکسونه کوم دي او هر یو یې څو کیلوګرامه دی؟ ________




۳- په یوه کارتن کې ۳٦ د شربت بوتله دي، آیا دوه کارتنه شربتونه د ۷۰ زده کوونکو لپاره بس دي؟ ______

**کورنۍ دنده**

په خپلو کتابچو کې یوه عبارتي پوښتنه ولیکئ او په هغه کې دوه رقمي عددونه وکاروئ او حل یې له ځان سره راوړئ.

## نولسم لوست

# د جمعې د دریو جزو جمع کول چې حاصل ولري

هدف: زده کوونکي به د دریو عددونو د جمعې حاصل چې حاصل لرونکي دي پیداکړای شي.

په یوه ښوونځي کې ۲۷ هلکان مطالعه کوي، **۳۴** هلکان دریاضي کورنۍ کار سرته رسوي او ۱۸ هلکان رسامي کوي، ټول څو هلکان دښوونځي درسي فعالیتونه سر ته رسوي؟

اوس د جمعې درې جزه یوله بله سره جمع کوو. د دې منظور لپاره لاندې حل په پام کې نیسو.

| په لومړي ګام کې یویز جمع کړئ | په دویم ګام کې حاصل ونیسئ | په دریم ګام کې لسیز جمع کړئ |
|---|---|---|
| | ① | ① |
| ۲۷ | ۲۷ | ۲۷ |
| ۳۴ | ۳۴ ۱۹ | ۳۴ |
| ۱۸ + | ۱۸ + | ۱۸ + |
| | ۹ | ۷۹ |

۷۹ هلکان دښوونځي کار کوي.

لومړی فعالیت: د خپل ټولګیوال سره یوځای کار وکړئ، جمع یې کړئ. که چېرې اړتیاوې حاصل ونیسئ د جمعې حاصل پیداکړئ.

| لسیز | یویز |
|---|---|
| ١ | |
| ۳ | ۲ |
| ۱ | ۸ |
| ۴ + | ۲ |
| ۹ | ۲ |

| لسیز | یویز |
|---|---|
| ☐ | |
| ۱ | ۸ |
| ۲ | ۱ |
| ۱ + | ۷ |
| | |

| لسیز | یویز |
|---|---|
| ☐ | |
| ۶ | ۲ |
| ۱ | ۴ |
| ۲ + | ۳ |
| | |

| لسیز | یویز |
|---|---|
| ☐ | |
| ۴ | ۷ |
| ۱ | ۰ |
| ۲ + | ۶ |
| | |

**دويم فعاليت: له خپل يوه ټولګيوال سره کار او جمع يې کړئ.**

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۵۱ | ۱۶ | ۴۸ | ۵۶ | ۱۲ | ۳۰ |
| ۲۳ | ۲۰ | ۲۱ | ۲۷ | ۲۵ | ۲۴ |
| ۱۳ + | ۶ + | ۲ + | ۴ + | ۵۱ + | ۲۰ + |
| ۸۷ | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۲۷ | ۳۵ | ۴۷ | ۲۳ | ۱۵ | ۲۲ |
| ۴۳ | ۲۱ | ۱۲ | ۲۳ | ۴۷ | ۱۳ |
| ۱۴ + | ۲۵ + | ۷ + | ۲۳ + | ۳۵ + | ۴۲ + |

۲۵ + ۳۷ + ۲۵ = ______     .۵ ۳۶ + ۱۸ + ۱۲ = ______

**دريم فعاليت: کوچنيان مرۍ په تار کې اچوي چې په مارکېټ کې يې وپلوري هر تار څو بيه لري؟**






______ افغانۍ



______ افغانۍ



______ افغانۍ



______ افغانۍ

## د دوو رقمي عددونو د جمعې د عمليې مشق او تمرين

**لومړی فعاليت:** حبيب ۹۳ افغانۍ لري هغه په دې افغانيو له لاندې شيانو څخه کوم دوه شيان اخيستلای شي.


کرتۍ
۴۹ افغانۍ


بوټ
۴۸ افغانۍ


پتلون
۴۵ افغانۍ


جاکټ
۴۰ افغانۍ

**فکر وکړئ، ترڅو تاسوته معلومه شي چې ستاسو فکر سم دی او که نه؟**

| د دې دواړو جنسونو بيه زياتيږي: کوښښ وکړئ داسي شی واخلئ چې بيه يې لږه وي. | زه نږدې يم، خو بيه يې اوس هم زيات ده کوښښ وکړئ داسې شی واخلئ چې بياهم لږه بيه ولري. | تاسو پوره پيسې لرې چې دا دوه شيان واخلئ. |
|---|---|---|
| ۴۹ افغانۍ | ۴۹ افغانۍ | ۴۹ افغانۍ |
| ۴۸ افغانۍ | ۴۵ افغانۍ | + ۴۰ افغانۍ |
| ۹۷ افغانۍ | ۹۴ افغانۍ | ۸۹ افغانۍ |

**دويم فعاليت:** له خپل ګروپ سره خبرې وکړئ.

۱- حبيب په ۹۳ افغانيو نور کوم دوه شيان اخيستلای شي؟

مرسته: هلته درې نور امکانات شته.

______ ______ ______

حل يې کړئ او فکر وکړئ

۲- جميله ۸٦ افغانۍ لري هغه غواړي چې له پورته شيانو څخه دوه شيان واخلي هغه کوم دوه شيان اخيستلای شي؟

جميله ______ او ______ اخيستلای شي.

دریم فعالیت:دشیانو قیمت ته په کتلو سره لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ.


ناوه کۍ
**۲۹ افغانۍ**


جورابې
**۴۹ افغانۍ**


قلم
**۴۲ افغانۍ**



کتاب
**۳۵ افغانۍ**


عینکې
**۳۰ افغانۍ**


موټرکۍ
**۲۵ افغانۍ**

**۱- جمیله ٦۹ افغانۍ لري هغه غواړي چې دوه شیان واخلي، هغه کوم شیان اخیستلای شي؟**

**جمیله ________ او________ اخیستلای شي؟**

**۲- جمیله په ٦۹ افغانیو نور کوم دوه شیان اخیستلای شي؟**

**جمیله ________ او________ اخیستلای شي.**

**۳- جمشید ٦۰ افغانۍ لري، هغه غواړي له پورته شیانو څخه دوه شیان واخلي هغه کوم شیان اخیستلای شي؟**

**جمشید ________ او________ اخیستلای شي.**

**۴- جمشید په ٦۰ افغانیو نور کوم دوه شیان اخیستلای شي؟**

**جمشید ________ او________ اخیستلای شي.**

**کورنۍ دنده**

**جمیله غواړي چې درې شیان واخلي. آیا پوره پیسې ورته لري؟ تاسو څرنګه پوهیږئ؟**

# څلورم فصل

# د دوه رقمي عددونو تفریق

## شلم لوست

**له دوه رقمي عدد څخه دیوه رقمي عدد تفریق کول چې په هغه کې پور اخیستل وي**

هدف: زده کوونکي به له دوه رقمي عدد څخه دیوه رقمي عدد چې په هغه کې پور اخیستل وي تفریق کړای شي.

مثال: تاسو ۲۱ قلمونه لرئ، غواړئ چې له هغو څخه ۸ قلمونه خپل ورورته ورکړئ، آیا په آسانه سره دا کار کولای شئ؟ څرنګه؟




په شکل کې لیدل کېږي چې یو دانه او دوه بنډلونه د لس ګونوقلمونه شته دي تر هغه وخت پورې له هغو څخه ۸ خپل ورورته ورکولای نشئ. په دې صورت کې باید دلسیو یوبنډل خلاص کړئ دمثال په توګه:




اوس چې ټول یوولس یودانه یي قلمونه او یو بنډل د لسیو دی له هغو څخه ۸ داني قلمونه خپل ورور ته ورکړئ چې په پای کې ۳ داني یودانه یي او یو بنډل د لسي پاتې کېږي چې ۱۳ قلمونه کېږي په ریاضي کې د تفریق دا عملیه داسې ښودل کېږي.

| | ⑪ ① |
|---|---|
| مفروق منه ⟵ | ۲ ۱ |
| مفروق ⟵ | − ۸ |
| دتفریق حاصل ⟵ | ۱ ۳ |

چې لوی عدد ته مفروق منه، کوچنی عدد ته مفروق او پاتې شوي عدد ته د تفریق حاصل وایي.

**مشق او تمرین: له دوه رقمي عدد څخه د یوه رقمي عدد تفریق کول د پور اخیستلو په صورت کې.**

**لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې تفریق کړئ.**

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۳۲ | ۲۷ | ۲۶ | ۲۴ |
| − ۵ | − ۹ | − ۸ | − ۷ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۵۷ | ۵۱ | ۴۵ | ۳۸ |
| − ۸ | − ۶ | − ۸ | − ۹ |

**کورنۍ دنده**

لاندی سوالونه حل کړئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۹۵ | ۸۲ | ۷۰ | ۶۳ |
| − ۷ | − ۶ | − ۱ | − ۹ |

## یو ویشتم لوست

## له دوه رقمي عددونو څخه د دوه رقمي عدد تفریق (د پوراخیستلوپه صورت کې)

هدف: زده کوونکي به له دوه رقمي عدد څخه ددوه رقمي عدد چې په هغه کې پور اخیستل وي تفریق کړای شي.

لومړی فعالیت: د تاسو اورلګیت ۴۵ لرګوټي لري او غواړئ چې د اورلګیت ۱۸ داني خپل ورور ته ورکړئ، داکار څرنګه سرته رسولی شئ؟

| یویز | لسیز |
|---|---|
| ۵ | ۴ |
| ۸ | ۱− |
| | |

پوهېږو چې ۴۵ د لسیو څلور بنډلو او ۵ یودانه یي څخه جوړ شوی دی او د ۱۸ عدد له یوه بنډل لسي او ۸ یوه دانه یي څخه حاصل شوی دی.

اوپه دې هم پوهېږو چې د تفریق په عملیه کې یویز له یویز او لسیز لــه لســیز څخه منفي کوو. څرنګه چې د لوی عدد (مفروق منه) د یویزو رقم ۵ یودانه یي دی او له هغه څخه د ۸ یو دانه یي عدد منفي کېدای نشي، نو د لسي یوبنــډل خلاصوو او په لسو یودانه یي یې بدلوو.




لس یودانه یي چې له ۵ یو دانه یي سره یوځای شي ۱۵ یودانه یي حاصلېږي او د لسیو له بنډلو څخه د لسیو درې بنډله پاتې کېږي. له ۱۵ یودانه یي څخه چې ۸ یودانه یي منفي کړو ۷ یو دانه یي پاتې کېږي اوله دریو لسیو څخه چې یــو بنډل د لسیو منفي شي ۲ بنډله پاتې کېږي چې د تفریق د دې عملیې په نتیجــه کې ۲۷ لرګوټي پاتې کېږي.

دا عملیه په ریاضي کې داسې تر سره کوو.

| | لسيز | يويز |
|---|---|---|
| | (۳) | (۱۵) |
| مفروق منه ◄.......... | ۴ | ۵ |
| مفروق ◄.......... | ۱− | ۸ |
| د تفريق حاصل ◄.......... | ۲ | ۷ |

**دويم فعاليت:**



| | |
|---|---|
| ۳ ۴ | ◄.......... مفروق منه |
| − ۱ ۶ | ◄.......... مفروق |
| | ◄.......... دتفريق حاصل |

**په پورتني شکل کې نشو کولای سمدلاسه له ۳۴ عدد څخه د ۱٦ عدد تفريق کړو، ترڅو چې يو بنډل د لسي په يوه دانه يي بدل نکړو، نوله دې امله د لسي يو بنډل په يو دانه يي باندې بدلوو او وروسته عمليه سرته رسوو.**



**په دې شکل کې ليدل کېږي چې ۱۴ يو دانه يي او ۲ لسي حاصل شوي دي. که چېرې له ۱۴ يودانه يي څخه ٦ يودانه يي منفي شي ۸ يودانه يي پاتې کيږي او له ۲ لسيو څخه چې يو لسي منفي شي ۱ لسی پاتې کېږي، د مثال په توګه:**

| | لسيز | يويز |
|---|---|---|
| | (۲) | (۱۴) |
| مفروق منه ◄.......... | ۳ | ۴ |
| مفروق ◄.......... | ۱− | ۶ |
| د تفريق حاصل ◄.......... | ۱ | ۸ |

**مشق او تمرین: ددوو رقمي عددونوتفریق.**

**عددونه تفریق کړئ او په هغو کې مفروق منه، مفروق او د تفریق حاصل وښایاست.**

(٧)(١١)

٨١ − ١۴ = ٦٧

| | | |
|---|---|---|
| ۴٩ − ٣١ = | ٦۴ − ٢۵ = | ٨١ − ١۴ = |
| ٦٢ − ١٢ = | ٢٢ − ١۵ = | ٧٣ − ٣٦ = |
| ۵٦ − ١٩ = | ٣٨ − ٩ = | ٩۴ − ٧ = |

**کورنۍ دنده:**

**تفریق یې کړئ.**

| | |
|---|---|
| ٦٩ − ۴٩ = | ۴۵ − ٣۵ = |
| ۵۴ − ٣۴ = | ٧٧ − ١٨ = |
| ٨٣ − ۴۴ = | ٩١ − ٦٦ = |

**مشق او تمرین: ددوو رقمي عددونو تفریق.**

دوه رقمي عددونه تفریق کړئ.

| درېیم | دویم | لومړی |
|---|---|---|
| ۵۱ − ۲۹ = ۲۲ ؛ ۴ − ۲ = ۲ | ۵۱ − ۲۹ ؛ ۱۱ − ۹ = ۲ | ۵۱ − ۲۹ |

معنا یې دا ده چې ۲۲ = ۲۹ − ۵۱

لومړی فعالیت: دخپل ټولګیوال سره په ګډه کار وکړئ،تفریق یې کړئ، که چېرې اړتیــاوي پــور واخلئ.

| لسیز | یویز | | لسیز | یویز | | لسیز | یویز | | لسیز | یویز |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۵ | ۱۸ | | □ | □ | | □ | □ | | □ | □ |
| ۶ | ۸ | | ۴ | ۵ | | ۸ | ۷ | | ۷ | ۳ |
| − ۴ | ۹ | | − ۳ | ۸ | | − ۵ | ۷ | | − ۲ | ۱ |
| ۱ | ۹ | | | | | | | | | |

| لسیز | یویز | | لسیز | یویز | | لسیز | یویز | | لسیز | یویز |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| □ | □ | | □ | □ | | □ | □ | | □ | □ |
| ۴ | ۵ | | ۶ | ۳ | | ۷ | ۸ | | ۹ | ۵ |
| − ۱ | ۸ | | − ۲ | ۷ | | − ۴ | ۹ | | − ۲ | ۶ |

په چوکاټ کې دکارشوي مثال نه په کار اخیستلو سره لاندې پوښــتنې حــل کړئ.

| ۹۰ | ۳۶ | ۴۳ | ۶۷ | ۹۷ |
|---|---|---|---|---|
| − ۷۱ | − ۱۷ | − ۵ | − ۳۸ | − ۷۸ |

دویم فعالیت: د تفریق عملیه سر ته ورسوئ.

| ۸۳ | ۳۹ | ۴۶ | ۲۰ | ۸۵ | ۴۲ |
|---|---|---|---|---|---|
| − ۲۴ | − ۱۲ | − ۲۵ | − ۱۳ | − ۲۰ | − ۱۹ |

| ۵۲ | ۹۳ | ۷۸ | ۵۶ | ۴۰ | ۸۳ |
|---|---|---|---|---|---|
| − ۳۷ | − ۶۱ | − ۱۹ | − ۴۷ | − ۲۵ | − ۲۴ |

قوانین تعقیب او تفریق یې کړئ، قانون او قاعده پیداکړئ او ورک شوي عددونه ولیکئ.

| د۱۷ عددله لاندې عددونو څخه تفریق کړئ | |
|---|---|
| ۶۸ | ۵۱ |
| ۴۹ | |
| ۷۳ | |
| ۳۱ | |
| ۵۵ | |

| تفریق یې کړئ | | |
|---|---|---|
| مفروق منه | مفروق | دتفریق حاصل |
| ۳۷ | ۱۹ | |
| ۹۳ | ۷۷ | |
| ۶۳ | ۴۳ | |
| ۷۰ | ۵۲ | |
| ۵۸ | ۴۰ | |

## کورنۍ دنده

صادق د ریاضي د پوښتنو د حل لپاره د کاغذ ۳۷ پاڼې درلودې چې یوڅه شــمېر د دې پاڼو څخه یوه کوچني مورِک وخوړلې چې ۱۹ پاڼې یې پاتې دي د مورِک خوړلــو پـــاڼو شمېر معلوم کړئ؟

## دوه ویشتم لوست

## د جمعې او تفریق د عملیو آزمویل د یو بل په واسطه

هدف: زده کوونکي دې د جمع او تفریق په عملیو پوه شي.

**د دې لپاره چې پوه شو، د جمعې عملیه صحیح سرته رسېدلې ده او که غلطه د جمعې پوښتنه حل او د لاندې عملیې په واسطه يې آزمویو.**

**مثال:**

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۷۵ | دجمعې لومړی جز | ۹۳ | مفروق منه |
| +۱۸ | دجمعې دویم جز | −۱۸ | مفروق |
| ۹۳ | دجمعې حاصل | ۷۵ | دتفریق حاصل |

**امتحانول:**

| | |
|---|---|
| ۹۳ | مفروق منه |
| −۷۵ | مفروق |
| ۱۸ | دتفریق حاصل |

**یعنې د جمعې د پوښتنې د صحیح والي لپاره د جمعې له حاصل څخه د جمعې یو جز تفریق کوو که چېرې د جمعې بل جز لاس ته راشي د جمعې پوښتنه صحیح ده. که چېرې د جمعې بل جز لاس ته رانشي، نو پوښتنه غلطه جمع شوې ده. لاندې پوښتنې حل او امتحان يې کړئ.**

۶۳ + ۲۹ = ☐ − ☐ = ☐

۵۹ + ۱۴ = ☐ − ☐ = ☐

۴۵ + ۲۸ = ☐ − ☐ = ☐

۴۸ + ۲۴ = ☐ − ☐ = ☐

**کورنۍ دنده**

۳۹ + ۳۶ = ☐ − ☐ = ☐

۴۸ + ۳۷ = ☐ − ☐ = ☐

۶۷ + ۲۷ = ☐ − ☐ = ☐

۷۵ + ۱۶ = ☐ − ☐ = ☐

# درویشتم لوست

## د تفریق د عملیې آزموینه

هدف: زده کوونکي به د جمعې دعملیې په سرته رسولو سره د تفریق د عملیې په صحیح والی باندې ډاډه اوسي.

**مثال:**

آزموینه:

۴ ۸ ← مفروق منه
− ۳ ۲ ← مفروق
۱ ۶ ← دتفریق حاصل

**د دې لپاره چې پوه شو د تفریق عملیه مو صحیح سرته رسولې ده اوکه نه په دې صورت کې د تفریق حاصل دمفروق سره جمع کوو که چېرې مفروق منه لاس ته راشي د تفریق پوښتنه صحیح حل شوې ده او که چېرې مفروق منه لاس ته رانشي نو پوښتنه غلطه حل شوې ده.**

**فعالیت:** لاندې سوالونه لومړی حل کړئ وروسته یې امتحان کړئ.

۴۹ − ۱۷ = ___ | + ___ = ___

۳۸ − ۲۸ = ___ | + ___ = ___

۶۷ − ۵۰ = ___ | + ___ = ___

۸۷ − ۴۸ = ___ | + ___ = ___

۷۰ − ۲۰ = ___ | + ___ = ___

**کورنی دنده:** د تفریق عملیې لاندې پوښتنه حل او امتحان یې کړئ.

۶۷ − ۵۰ = ___ | + ___ = ___

## څلور ويشتم لوست

## د عددونو جمع کول د چوت په واسطه

**هدف**: زده کوونکي به عددونه د چوت په واسطه جمع کړای شي.

دا د چوت يو کوچنی نمونه ده. په داسې حال کې د ښي خوا سيخ يا ميله د يويزو مرتبه او د کيڼ خوا سيخ يا ميله د لسيزو مرتبه ښيي، داچوت د يويزو په مرتبه کې ۸ دانې مرۍ لري او د لسيزو په مرتبه کې يې مرۍ نشته چې صفر راښيي. دا چوت چې تاسو وينئ ۸ عدد ښيي.

يويز لسيز

**مثال: د ۱۰ او ۱۱ عددونه په لاندې چوټونو کې ښودل شوي دي.**







**لومړی فعاليت:**

**تاسو دا هر يو شکل خپلو کتابچو ته نقل کړئ او د هغه اړوند عدد وليکئ.**









اوس غواړو د چوت په واسطه د دوو عددونو د جمع کولو په طریقه باندې پوه شو، د دې مطلب د روښانه کولو لپاره د ۱۳ عدد له۱۱ له عدد سره جمع کوو.




**۱۱ + ۱۳ ⟵ ۱۰ + ۱۴ ⟵ ۲۰ + ۴ = ۲۴**

له کینې خوا څخه په لومړي چوت کې د یویزو په ځای کې یوه مرۍ او د لسیزو په ځای کې هم یوه مرۍ شته ده چې د۱۱ عدد راښیي. او ۱۳ مرۍ په هغو باندې دزیاتوالي په حالت کې دي. کله چې ۱۳ مرۍ ګانې پــه هغــو بانــدې ورزیات شي، نوپه دویم شکل کې د یویزو په ځای ۱۴ مرۍ او د لســیزو پــه ځای کې بیاهم هغه یوه مرۍ ده. څرنګه چې پوهېږو چې لس یو دانه یي دیــوه لسي سره مساوي کېږي، نو د لسو یو دانه یي مریو په ځای د لسیزو په ځــای کي یوه مرۍ ږدو چې د یویزو په ځای کې ۴ مرۍ پاتې کېږي او د لسیزو پــه ځای کي ۲ مرۍ پاتې کېږي چې دوه لسه یعنې ۲۰ راښیي په دې صورت کې وروستۍ چوت د۲۴ عدد راښیي.

**دویم فعالیت:** د چوت څخه په کار اخیستلو سره لاندې پوښتنې د زده کوونکــو په واسطه جمع کړئ.

| ۱۲ | ۲۸ | ۲۴ | ۱۵ |
|---|---|---|---|
| + ۷ | + ۱۳ | + ۱۰ | + ۸ |

**کورنۍ دنده:** د ۳۵ او ۷۷ عددونه په چوت کې وښیئ.

## پنځه ویشتم لوست

### د عددونو تفریق د چوت په واسطه

هدف:زده کوونکي به د تفریق عملیه دچوت په واسطه سرته ورسولای شي.

غواړو دچوت په واسطه د۲۵ له عدد څخه د۱۲ عدد تفریق کړو.

۲۵ − ۱۲ = ☐




۲۵ − ۱۲ = ۱ ۳

د شکل له مخې لیدل کېږي چې د یویزو له سیخ څخه دوه مـــرۍ او د لسیزو څخه یوه مرۍ اېستل کېږي، په نتیجه کې د ښي خوا په چـــوت کې د یویزو په سیخ کې ۳ مرۍ او د لسیزو په سیخ کې یوه مرۍ پاتې کیږي. چې د تفریق حاصل یې د۱۳ عدد کېږي.

**فعالیت:**

۱− د تفریق لاندې پوښتنې په چوت کې سرته ورسوئ.

| ۱۲ | ۱۵ | ۲۴ | ۲۳ |
|---|---|---|---|
| − ۷ | − ۸ | − ۱۰ | − ۱۳ |

۲−د ۶، ۱۴، ۱۶، ۲۵، ۶۳ او ۷۹ عددونه په چوت کې وښایاست.

**کورنۍ دنده:** په لاندې شکلونو کې د هرچوت اړوند عدد د هغو لاندې ولیکئ.



# پنځم فصل

## شپږ ويشتم لوست

## له (۱۰۰ – ۱۰۰۰) پورې د عددونو لوستل او ليکل

**هدف:** زده کوونکي به تر ۱۰۰۰ پورې دعددونو لوستل اوليکل زده کړي.

موږ پوهېږو چې ټول عددونه له لاندې لسو شکلونو څخه جوړ شوي دي.

۰ ، ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ٦، ۷، ۸ او ۹

چې پورته هر يوه شکل ته رقم وايي، که چېــرې د ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ٦، ۷، ۸ او ۹ عددونو ښي خواته يو صفر کېږدو، نو لاندې عددونه لاس ته راځي.

۱۰، ۲۰، ۳۰، ۴۰، ۵۰، ٦۰، ۷۰، ۸۰، ۹۰ چې دا عددونه يو لسى ياځو لسيه راښيي او دا له ۱۰ څخه تر۹۹ پورې عددونه دوه رقمي عددونه دي چې له ښي خوا څخه د کيڼ خواته په ترتيب سره لومړي رقم ته د يويزو ځاى او د هغو دويم رقم ته د لسيزو ځاى وايي.

اوس که چېرې د يو رقمي عددونو ښي خواته دوه صفرونه کېښودل شــي، نــو د ۱۰۰، ۲۰۰، ۳۰۰، ۴۰۰، ۵۰۰، ٦۰۰، ۷۰۰، ۸۰۰ او ۹۰۰ عددونه حاصلېږي چې دا عددونه يو سلي يا څو سلونه راښيي او درې رقمي عددونه بلل کېږي.

## اووه ويشتم لوست

# لس گوني (لسيز) او سل گوني

هدف: زده کوونکي به په دې پوه شي چې لس يويز مساوي له يوه لسي، اولس (لسيز) لسي مساوي له يوه سلي سره کېږي.




دويم شکل لومړي شکل ۱-سلی دريم شکل ۱۰ لس گوني

که چېرې پورتني شکلونه وليدل شي په آسانۍ سره پوهېدلای شو چې دويم شکل د لومړي شکل لس برابره دی چې ۱۰ ددوه رقمو کوچنی عدد دی او د هغو دريم شکل ۱۰۰ معرفي کوي چې د دويم شکل لس برابره او سل برابره د لومړي شکل ښخه دی چې د درې رقميو کوچنی عدد دی.

لومړی فعاليت: هر کتار څو سليه رانبيي ويي ليکئ

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱. | | ۲ سلگوني | ۲۰۰ |
| ۲. | | ___ سلگوني | |
| ۳. | | ___ سلگوني | |
| ۴. | | ___ سلگوني | |
| ۵. | | ___ سلگوني | |
| ۶. | | ___ سلگوني | |

مورږ سلونه د لسونو په توګه لیکلای شو څرنګه:




**دویم فعالیت:** د پورته مثال څخه په کار اخیستو سره د شکلونو له مخې تـــش ځایونه ډک کړئ.

۱. ۱۰۰ = ۱۰ لسیه

۲. ___ = ___ لسیه

۳. ___ = ___ لسیه

۴. ___ = ___ لسیه

۵. ___ = ___ لسیه

۶. ___ = ___ لسیه

**کورنۍ دنده:**

لاندې عددونه خپلو کتابچو ته نقل کړئ او په تورو یې ولیکئ.

**۳۰۰ ، ۲۰۰ ، ۴۰۰ ، ۹۰۰ ، ۸۰۰ ، ۵۰۰ ، ۷۰۰ ، ۸۰۰**

## اته ویشتم لوست

# سلیز، لسیز او یویز

هدف: زده کوونکي به درې رقمي عددونه په اړوند مرتبو کې ځای پر ځای کړای شي.

ګرانو زده کوونکو! تاسو په تېر لوست کې له ۱۰۰ څخه تر ۹۰۰ پورې عددونه پېژندلي دي. اوس که چېرې د ۱۰۰، ۲۰۰، ۰۰۰، ۹۰۰ عددونو د لومړي رقم په ځای د ۱، ۲، ۰۰۰، ۹ یو رقمي عدد ولیکو د۱۰۱، ۱۰۲، ۱۰۳، ۱۰۴، ۱۰۵، ۱۰۶، ۱۰۷، ۱۰۸ او۱۰۹ عددونه حاصلېږي، همدارنګه که چېرې ددواړو صفرونو په ځای نور رقمونه ولیکل شي له ۱۱۱ څخه تر ۹۹۹ پورې عددونه لاس ته راځي چې له ۱۰۰ څخه تر ۹۹۹ پورې درې رقمي عددونه دي. تر ټولو کوچنی درې رقمي عدد ۱۰۰ دی او تر ټولو لوی درې رقمي عدد ۹۹۹ دی او د هغو اړوند رقم د یویزو، لسیزو او سلیزو په ځایونوکې په لاندې توګه لیکل کېږي:

| یویز | لسیز | سلیز | یویز | لسیز | سلیز | یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | | | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۲ | ۳ | ۸ |




دوه سوه اته دېرش



زه لومړی سلیز شمیرم وروسته لسیز او یویز او وروسته تر هغه عدد لیکم.

**فعالیت: لاندې مثالونه د نمونې په څیر حل کړئ.**

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۴ | ۰ | ۴ |

۴۰۴

______________

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| | | |

______________

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| | | |

______________

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| | | |

______________













۸. تاسو يو عدد وټاکئ او د ، شکلونو په واسطه هغه عدد وښاياست.




**کورنۍ دنده:** نمونې ته وګورئ او ځوابونه يې پيدا کړئ.

په ۴۰۰ کې څومره ؟     په ۹۰۰ کې څومره ؟

په ۴۰۰ کې څومره ؟     په ۹۰۰ کې څومره ؟

په ۴۰۰ کې څومره ؟     په ۹۰۰ کې څومره ؟

## نه ویشتم لوست

# تر ۱۰۰۰ پورې د عددونو مقامي ارزښت

**هدف**: زده کوونکي به برسیره پردې چې تر زرو پورې دعددونو مقامي قیمت وپېژني او وېې لیکي د شکلونو له مخې به وکړای شي اړوند عددولیکي.

یو عدد په ۳ ډوله لیکلای شو لکه:



۳ سلیۍ ۱ لسي ۴ یودانه یي

۴ + ۱۰ + ۳۰۰

۳۱۴

لومړی فعالیت: د خپل یوه ټولګیوال سره کاروکړئ، د حل شوي مثال څخه په کاراخیستلو سره عدد په ۳ ډوله ولیکئ:

۱. 

____ سلیز ____ لسیز ____ یویز

____ + ____ + ____

______

۲. 

____ سلیز ____ لسیز ____ یویز

____ + ____ + ____

______

۳. 

____ سلیز ____ لسیز ____ یویز

____ + ____ + ____

______

۴. 

____ سلیز ____ لسیز ____ یویز

____ + ____ + ____

______

دویم فعالیت: شکلونه وګورئ او دهغو اړوند عددونه ګروپ بندې او ویې لیکئ.

مثال:

۱. ۱ سلیز ۱ لسیز ۱۲ یویز

یولسئ جوړولی شو

۲. شکل ته وګورئ له یویزو څخه یوبل لسی یا لسیز جوړ کړئ.

دلسو له ګروپ څخه دایره تاوکړئ

۳. ۱ سلئ ۲ لسئ ۲ یودانه یې ۱۲۲

۱. له لسېو (لسیزو) څخه د سلېو(سلیزو) ګروپ جوړ کړئ او اړوند عدد یې ولیکئ.

۱ سلي ۱ لسی ۷ یودانه یي

۱۱۷

---

۲. ___ سلي ___ لسي ___ یودانه یي

___ + ___ + ___

___

---

۳. ___ سلي ___ لسي ___ یودانه یي

___ + ___ + ___

___

---

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د شکل له مخې ولیکي په دریو طریقو په خالي ځایونو کې

___ سلي ___ لسي ___ یودانه یي

___ + ___ + ___

___

لاندې جدول د عددونو سلسله (پرله پسې توب) له ۱۰۰–۵۰۰ پورې ښيي.

| ۱۰۰ | ۱۰۱ | ۱۰۲ | ۱۰۳ | ۱۰۴ | ۱۰۵ | ۱۰۶ | ۱۰۷ | ۱۰۸ | ۱۰۹ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۱۰ | ۱۱۱ | ۱۱۲ | ۱۱۳ | ۱۱۴ | ۱۱۵ | ۱۱۶ | ۱۱۷ | ۱۱۸ | ۱۱۹ |
| ۱۲۰ | ۱۲۱ | ۱۲۲ | ۱۲۳ | ۱۲۴ | ۱۲۵ | ۱۲۶ | ۱۲۷ | ۱۲۸ | ۱۲۹ |
| ۱۳۰ | ۱۳۱ | ۱۳۲ | ۱۳۳ | ۱۳۴ | ۱۳۵ | ۱۳۶ | ۱۳۷ | ۱۳۸ | ۱۳۹ |
| ۱۴۰ | ۱۴۱ | ۱۴۲ | ۱۴۳ | ۱۴۴ | ۱۴۵ | ۱۴۶ | ۱۴۷ | ۱۴۸ | ۱۴۹ |
| ۱۵۰ | ۱۵۱ | ۱۵۲ | ۱۵۳ | ۱۵۴ | ۱۵۵ | ۱۵۶ | ۱۵۷ | ۱۵۸ | ۱۵۹ |
| ۱۶۰ | ۱۶۱ | ۱۶۲ | ۱۶۳ | ۱۶۴ | ۱۶۵ | ۱۶۶ | ۱۶۷ | ۱۶۸ | ۱۶۹ |
| ۱۷۰ | ۱۷۱ | ۱۷۲ | ۱۷۳ | ۱۷۴ | ۱۷۵ | ۱۷۶ | ۱۷۷ | ۱۷۸ | ۱۷۹ |
| ۱۸۰ | ۱۸۱ | ۱۸۲ | ۱۸۳ | ۱۸۴ | ۱۸۵ | ۱۸۶ | ۱۸۷ | ۱۸۸ | ۱۸۹ |
| ۱۹۰ | ۱۹۱ | ۱۹۲ | ۱۹۳ | ۱۹۴ | ۱۹۵ | ۱۹۶ | ۱۹۷ | ۱۹۸ | ۱۹۹ |
| ۲۰۰ | ۲۰۱ | ۲۰۲ | ۲۰۳ | ۲۰۴ | ۲۰۵ | ۲۰۶ | ۲۰۷ | ۲۰۸ | ۲۰۹ |
| ۲۱۰ | ۲۱۱ | ۲۱۲ | ۲۱۳ | ۲۱۴ | ۲۱۵ | ۲۱۶ | ۲۱۷ | ۲۱۸ | ۲۱۹ |
| ۲۲۰ | ۲۲۱ | ۲۲۲ | ۲۲۳ | ۲۲۴ | ۲۲۵ | ۲۲۶ | ۲۲۷ | ۲۲۸ | ۲۲۹ |
| ۲۳۰ | ۲۳۱ | ۲۳۲ | ۲۳۳ | ۲۳۴ | ۲۳۵ | ۲۳۶ | ۲۳۷ | ۲۳۸ | ۲۳۹ |
| ۲۴۰ | ۲۴۱ | ۲۴۲ | ۲۴۳ | ۲۴۴ | ۲۴۵ | ۲۴۶ | ۲۴۷ | ۲۴۸ | ۲۴۹ |
| ۲۵۰ | ۲۵۱ | ۲۵۲ | ۲۵۳ | ۲۵۴ | ۲۵۵ | ۲۵۶ | ۲۵۷ | ۲۵۸ | ۲۵۹ |
| ۲۶۰ | ۲۶۱ | ۲۶۲ | ۲۶۳ | ۲۶۴ | ۲۶۵ | ۲۶۶ | ۲۶۷ | ۲۶۸ | ۲۶۹ |
| ۲۷۰ | ۲۷۱ | ۲۷۲ | ۲۷۳ | ۲۷۴ | ۲۷۵ | ۲۷۶ | ۲۷۷ | ۲۷۸ | ۲۷۹ |
| ۲۸۰ | ۲۸۱ | ۲۸۲ | ۲۸۳ | ۲۸۴ | ۲۸۵ | ۲۸۶ | ۲۸۷ | ۲۸۸ | ۲۸۹ |
| ۲۹۰ | ۲۹۱ | ۲۹۲ | ۲۹۳ | ۲۹۴ | ۲۹۵ | ۲۹۶ | ۲۹۷ | ۲۹۸ | ۲۹۹ |
| ۳۰۰ | ۳۰۱ | ۳۰۲ | ۳۰۳ | ۳۰۴ | ۳۰۵ | ۳۰۶ | ۳۰۷ | ۳۰۸ | ۳۰۹ |
| ۳۱۰ | ۳۱۱ | ۳۱۲ | ۳۱۳ | ۳۱۴ | ۳۱۵ | ۳۱۶ | ۳۱۷ | ۳۱۸ | ۳۱۹ |
| ۳۲۰ | ۳۲۱ | ۳۲۲ | ۳۲۳ | ۳۲۴ | ۳۲۵ | ۳۲۶ | ۳۲۷ | ۳۲۸ | ۳۲۹ |
| ۳۳۰ | ۳۳۱ | ۳۳۲ | ۳۳۳ | ۳۳۴ | ۳۳۵ | ۳۳۶ | ۳۳۷ | ۳۳۸ | ۳۳۹ |
| ۳۴۰ | ۳۴۱ | ۳۴۲ | ۳۴۳ | ۳۴۴ | ۳۴۵ | ۳۴۶ | ۳۴۷ | ۳۴۸ | ۳۴۹ |
| ۳۵۰ | ۳۵۱ | ۳۵۲ | ۳۵۳ | ۳۵۴ | ۳۵۵ | ۳۵۶ | ۳۵۷ | ۳۵۸ | ۳۵۹ |
| ۳۶۰ | ۳۶۱ | ۳۶۲ | ۳۶۳ | ۳۶۴ | ۳۶۵ | ۳۶۶ | ۳۶۷ | ۳۶۸ | ۳۶۹ |
| ۳۷۰ | ۳۷۱ | ۳۷۲ | ۳۷۳ | ۳۷۴ | ۳۷۵ | ۳۷۶ | ۳۷۷ | ۳۷۸ | ۳۷۹ |
| ۳۸۰ | ۳۸۱ | ۳۸۲ | ۳۸۳ | ۳۸۴ | ۳۸۵ | ۳۸۶ | ۳۸۷ | ۳۸۸ | ۳۸۹ |
| ۳۹۰ | ۳۹۱ | ۳۹۲ | ۳۹۳ | ۳۹۴ | ۳۹۵ | ۳۹۶ | ۳۹۷ | ۳۹۸ | ۳۹۹ |
| ۴۰۰ | ۴۰۱ | ۴۰۲ | ۴۰۳ | ۴۰۴ | ۴۰۵ | ۴۰۶ | ۴۰۷ | ۴۰۸ | ۴۰۹ |

| ۴۱۰ | ۴۱۱ | ۴۱۲ | ۴۱۳ | ۴۱۴ | ۴۱۵ | ۴۱۶ | ۴۱۷ | ۴۱۸ | ۴۱۹ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۴۲۰ | ۴۲۱ | ۴۲۲ | ۴۲۳ | ۴۲۴ | ۴۲۵ | ۴۲۶ | ۴۲۷ | ۴۲۸ | ۴۲۹ |
| ۴۳۰ | ۴۳۱ | ۴۳۲ | ۴۳۳ | ۴۳۴ | ۴۳۵ | ۴۳۶ | ۴۳۷ | ۴۳۸ | ۴۳۹ |
| ۴۴۰ | ۴۴۱ | ۴۴۲ | ۴۴۳ | ۴۴۴ | ۴۴۵ | ۴۴۶ | ۴۴۷ | ۴۴۸ | ۴۴۹ |
| ۴۵۰ | ۴۵۱ | ۴۵۲ | ۴۵۳ | ۴۵۴ | ۴۵۵ | ۴۵۶ | ۴۵۷ | ۴۵۸ | ۴۵۹ |
| ۴۶۰ | ۴۶۱ | ۴۶۲ | ۴۶۳ | ۴۶۴ | ۴۶۵ | ۴۶۶ | ۴۶۷ | ۴۶۸ | ۴۶۹ |
| ۴۷۰ | ۴۷۱ | ۴۷۲ | ۴۷۳ | ۴۷۴ | ۴۷۵ | ۴۷۶ | ۴۷۷ | ۴۷۸ | ۴۷۹ |
| ۴۸۰ | ۴۸۱ | ۴۸۲ | ۴۸۳ | ۴۸۴ | ۴۸۵ | ۴۸۶ | ۴۸۷ | ۴۸۸ | ۴۸۹ |
| ۴۹۰ | ۴۹۱ | ۴۹۲ | ۴۹۳ | ۴۹۴ | ۴۹۵ | ۴۹۶ | ۴۹۷ | ۴۹۸ | ۴۹۹ |
| ۵۰۰ | | | | | | | | | |

**تمرین:**

**د ۱۰۵ عدد په چوت کې ښودل شوي دي له هغه څخه په کار اخیستلو سره د۱۰۹،۱۰۸ او ۱۲۰ عددونه په چوت کې وښایاست.**




**کورنۍ دنده**

په خپلو کتابچو کې د (۲۰۱ او ۲۱۰) عددونه په چوت کې وښایاست.

## دېرشم لوست

# د یوه عدد مخ کې عدد، وروسته او دوه عددونو منځ عدد

هدف: په دې لوست کې به زده کوونکي دیوه عدد نه مخ کې عدد، دیوه عدد څخه وروسته او هغه عدد چې ددوو عددونو په منځ کې دي وپیژني.

۱–هغه عددونه ولیکئ چې د درکړل شوو عددونوڅخه یو عدد مخ کې شتون لري.

| | | |
|---|---|---|
| مثال. ۲۷۸ ، ۲۷۷ | ۵۴۶ ، ___ | ۱۲۷ ، ___ |
| ۳۲۹ ، ___ | ۴۴۰ ، ___ | ۷۸۱ ، ___ |
| ۶۳۰ ، ___ | ۹۱۷ ، ___ | ۸۴۶ ، ___ |

۲– هغه عددونه ولیکئ چې د درکړل شوو عددونو څخه یو عدد وروسته قرارلري.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۱۲، ___ | ۳۱۹، ___ | ۸۵۵، ___ |
| ۴۷۸، ___ | ۹۹۸، ___ | ۲۵۲، ___ |
| ۵۹۱، ___ | ۷۴۳، ___ | ۶۶۹، ___ |

۳–هغه عددونه ولیکئ چې د لاندې درکړل شوي عددونو په منځ کې راشي.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۱۸، ___ ، ۱۲۰ | ۴۹۹، ___ ، ۵۰۱ | ۷۸۷، ___ ، ۷۸۹ |
| ۶۴۲، ___ ، ۶۴۳ | ۲۹۹، ___ ، ۳۰۱ | ۹۵۳، ___ ، ۹۵۵ |
| ۸۲۷، ___ ، ۸۲۹ | ۳۳۵، ___ ، ۳۳۷ | ۳۷۸، ___ ، ۳۸۰ |

۴– ټول هغه عددونه چې د ۵۴۰ او ۵۶۰ په منځ کې دي ویې لیکئ.

**کورنۍ دنده:**

د درکړل شوو عددونو مخ کې وروسته یا منځ کې عددونه ولیکئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۲۲۲، ___ ، ۲۲۴ | ، ___ ، ۱۹۶ | ۲۳۴، ___ |
| ۴۲۱ ، ___ | ۶۴۹، ___ ، ۶۵۱ | ۹۱۹، ___ |

## یودېرشم لوست

# د عددونو پرتله

هدف: زده کوونکي به کوچني او لوی عددونه یوله بله سره تشخیص او همدارنگه دوه مساوي عددونه وپېژنـــي د >، < او = نښې وکاروي.

| > | < | = |
|---|---|---|
| دا > نښه زیات راښیي<br>۳۴۲ >۱۱۱<br>۳۴۲ زیات له ۱۱۱ څخه دي | دا < نښه لږ راښیي<br>۱۱۱ < ۳۴۲<br>۱۱۱ لږ له ۳۴۲ څخه دي. | دا = نښه مساوي راښیي.<br>۱۵۰ = ۱۵۰<br>۱۵۰ مساوي له ۱۵۰ سره دي |

**فعالیت: د عددونو هره جوړه د ( <، > یا =) نښې په دایره کې په ایښودلوسره پرتله کړئ.**

| | | |
|---|---|---|
| ۴۲۳ (<) ۳۵۳ | ۵۰۱ ◯ ۴۹۲ | ۲۷۱ ◯ ۲۷۱ |
| ۵۴۷ ◯ ۴۹۹ | ۷۷۷ ◯ ۸۱۲ | ۱۴۲ ◯ ۲۴۲ |
| ۶۸۷ ◯ ۸۲۱ | ۳۱۷ ◯ ۳۱۷ | ۹۲۸ ◯ ۹۲۹ |
| ۶۲۵ ◯ ۶۲۵ | ۴۱۸ ◯ ۲۵۷ | ۵۸۹ ◯ ۵۸۹ |
| ۱۲۹ ◯ ۱۷۲ | ۳۶۴ ◯ ۲۸۱ | ۶۶۹ ◯ ۵۶۹ |
| ۲۳۰ ◯ ۱۰۰ | ۷۶۸ ◯ ۸۰۱ | ۴۱۲ ◯ ۴۱۲ |

**تاسو د ۳۰۰ او ۴۰۰ په منځ کې مناسب عددونه د لاندې پوښتنو په حل کـــې استعمال کړئ.**

| | | |
|---|---|---|
| ____ (<) ____ | ____ (=) ____ | ____ (>) ____ |
| ____ (>) ____ | ____ (>) ____ | ____ (=) ____ |

**کورنۍ دنده:** معما حل کړئ.

**۱. زه یو عددیم چې له ۶۷۵ څخه لږ او له ٦٦٧ څخه زیات یم په داسې توگه چې زما د یویز رقم ۲ دی. زه کوم عدد یم؟**

**۲. د یوه عدد په برخه کې یوه معما ولیکئ او هغه خپل ملگري ته ورکړئ چې حل یې کړي.**

## دوه دېرشم لوست

# د عددونو ترتیب نظر په مقامي ارزښت سره

هدف: زده کوونکي به عددونه نظر په مقامي ارزښت سره ترتیب او دځایونو ټاکل وکړای شي.

**دیوه کتاب له فهرست څخه دا مخونه په نظر کې نیسو.**

فهرست



لاندي عددونه له ښې خوا څخه کیڼې خواته د کوچنې عدد څخه لوي عدد ته ترتیب شوی دي.

**۳۱۸، ۳۳۷، ۴۰۰، ۴۲۰، ۴۶۲**

**او دا عددونه د ډېر لوی عددڅخه دکوچني عدد خواته ترتیب شوي دي ۴۶۲، ۴۲۰، ۴۰۰، ۳۳۷، ۳۱۸**

لومړی فعالیت:

۱– لاندې عددونه د ډېر لږو څخه د ډېر زیاتو خواته ترتیب او ویې لیکئ.

۱۱۹، ۹۳، ۱۲۵، ۲۰۱ ______، ______، ______، ______

۲۹۶، ۲۲۸، ۲۵۲، ۲۸۳ ______، ______، ______، ______

۷۷، ۴۱۵، ۶۹۰، ۱۵۲ ______، ______، ______، ______

---

۲– لاندې عددونه د ډېرو زیاتو څخه د ډېرو لږو خواته ترتیب او ویې لیکئ.

۳۴۸، ۲۲۰، ۴۶۴، ۷۳۲ ______، ______، ______، ______

۶۰۵، ۹۷۳، ۷۵۱، ۴۸۹ ______، ______، ______، ______

۲۴۵، ۲۱۷، ۲۷۳، ۲۲۹ ______، ______، ______، ______

---

۳. د ۸، ۲ او ٦ رقمونو په کارولو سره کوم درې رقمي عددونه لیکلی او جوړولی شئ؟

____ ____ ____ ____ ____ ____

---

۴. د خپلې خوښې عددونه د ډېرو لږو څخه د ډېر لوی خواته ترتیب او ویې لیکئ

، ____، ____، ____، ____، ____، ____، ____، ____، ____

ډېر لږ ... ډېر زیات

---

کورنۍ دنده: څلور عددونه په ترتیب سره د ډېر زیات څخه د ډېر کوچني عدد خواته ترتیب کړئ او دا عددونه د ٦۰۰ او ۸۰۰ ترمنځ وټاکئ.

______، ______، ______، ______

**دویم فعالیت:**




**لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست.**

**د ۴۶۴ او ۷۰۹ عددونه استعمال کړئ، ترڅو هرې پوښتنې ته ځواب ووایاست.**

**۱- د کوم عدد یویز ۴ دی؟**

**۲- د کوم عدد لسیز صفر دی؟**

**۳- د کوم عدد لسیز ۶ دی؟**

**۴- د کوم عدد سلیز ۷ دی؟**

**۵- د دې دواړو عددونو د تفریق حاصل پیدا کړئ؟**

**۶- کوم عدد لوی دی؟ ______**

---

**دلاندې شکلونو څخه په ګټې اخیستلو سره اړوند عددونه په درې ډوله ولیکئ.**



______ سل ______ لسه ______ یو

______ + ______ + ______

______

---



______ سل ______ لسه ______ یو

______ + ______ + ______

دريم فعاليت: لاندي شکلونه په خپلو کتابچو کې رسم کړئ له يـــويزو او لســـيزو څخه په ترتيب سره د لسو او سلو گروپونه جوړ او د هغو له شاوخوا څخه دايـــره وکاږئ او اړوند عدد يې وليکئ.



يو ——— لسه ——— سل ———

——— + ——— + ———

———



يو ——— لسه ——— سل ———

——— + ——— + ———

———



يو ——— لسه ——— سل ———

——— + ——— + ———

———

۲– لاندې پوښتنې خپلو کتابچوته نقل کړئ اوپه دايرو کې د<،> يا = مناسبه نښـــه وليکئ.

۲۰۷ ◯ ۷۰۲ ۱۱۶ ◯ ۱۶۱ ۲۲۰ ◯ ۱۲۱

۴۳۷ ◯ ۷۴۳ ۳۳۲ ◯ ۲۳۳ ۳۱۲ ◯ ۱۲۳

د حل شوي مثال سره سم تش ځايونه ډک کړئ.

۶۰۵، ۶۱۵، ۶۲۵، ۶۳۵ ۸۰۰، ۸۰۵، ۸۱۰، ———

۳۴۰، ۳۵۰، ۳۶۰، ——— ۵۹۹، ۶۹۹، ۷۹۹، ———

۳۲۲، ۳۳۲، ۳۴۲، ——— ۷۲۰، ۷۲۴، ۷۲۸، ———

**کورنۍ دنده:**

مخ کې عدد وروسته عدد او د دوو عددونو په منځ کې عدد وليکئ.

———، ۴۳۶ ۸۰۹، ———، ۸۱۱ ۱۷۰، ———

۶۳۷، ———، ۶۳۹ ۳۳۳، ——— ۴۴۴، ———

# شپږم فصل

# د درې رقمي عددونو جمع او تفریق

## درې دېرشم لوست

## د سلونو جمع کول

هدف: په دې لوست کې به زده کوونکي په درې رقمي (سلونو) عددونوکې جمع او تفریق سرته ورسولی شي.

د چوکاټ په تشو ځایونو کې هغه وزنونه ولیکئ چې په افقي ډول سره جمع شي او د موټر بار بشپړ شي.

| | | |
|---|---|---|
| ۵۰۰ کیلوگرامه | ..... کیلوگرامه | |
| .... کیلوگرامه | ۷۰۰ کیلوگرامه | |
| ۱۰۰ کیلوگرامه | ۵۰۰ کیلوگرامه | .... کیلوگرامه |
| ۸۰۰ کیلوگرامه | ..... کیلوگرامه | ۱۰۰ کیلوگرامه |

دا لاری ۱۰۰۰ کیلوگرام بار وړي.

مثال:



۳ سله



۲ سله

۵ سله = ۲ سله + ۳ سله

۵۰۰ = ۲۰۰ + ۳۰۰

---

فعالیت: پورتنې مثال په نظر کې ونیسئ اولاندې پوښتنې جمع کړئ.

.۱





____ سله = ____ سله + ____ سله

____ = ____ + ____

۲. 

سله ــــ = سله ــــ + سله ــــ

ــــ = ــــ + ــــ

۳. 

سله ــــ = سله ــــ + سله ــــ

ــــ = ــــ + ــــ

۴. 

سله ــــ = سله ــــ + سله ــــ

ــــ = ــــ + ــــ

۵. 

ــــ سله ــــ

ــــ + سله + ــــ

ــــ سله ــــ

٦. 

ــــ سله ــــ

ــــ + سله + ــــ

ــــ سله ــــ

**کورنۍ دنده:** لاندې پوښتنې د سلګونو بنډلونو په څېر کتابچو کې رسم او جمع یې کړئ.



۲ سله ــــ

۳ سله ــــ +

سله ــــ

ــــ

ــــ +

ــــ

## څلور دېرشم لوست

## د درې رقمي عدد جمع کول له درې رقمي عددسره چې ديويز او لسيز رقمونه يې صفر وي

هدف:زده کوونکي به يو درې رقمي عدد له بل درې رقمي عدد سره چې ديويز او لسيز رقمونه يې صفر وي جمع کړاي شي.

مثال

۳ سله ۳ لسه ۱ يو
۵ سله ۰ لسه ۰ يو
۸ سله ۳ لسه ۱ يو

۸۳۱ = ټوله

۳۳۱
+ ۵۰۰
۸۳۱

فعاليت: د پورته مثالونه په څير لاندې سوالونه حل کړئ.

___ سله ___ لسه ___ يو
___ سله ___ لسه ___ يو
___ سله ___ لسه ___ يو

___
+ ___
___

___ سله ___ لسه ___ يو
___ سله ___ لسه ___ يو
___ سله ___ لسه ___ يو

___
+ ___
___

| ۲۷۳ | ۱۸۷ | ۶۱۲ | ۴۳۹ | ۶۴۳ |
|---|---|---|---|---|
| + ۳۰۰ | + ۵۰۰ | + ۱۰۰ | + ۵۰۰ | + ۲۰۰ |

| ۵۲۷ | ۷۲۸ | ۴۸۳ | ۵۱۲ | ۳۷۴ |
|---|---|---|---|---|
| + ۱۰۰ | + ۲۰۰ | + ۳۰۰ | + ۱۰۰ | + ۴۰۰ |

**کورنۍ دنده:** جمع يې کړئ.

| ۸۴۷ | ۲۴۷ | ۴۸۲ | ۳۷۱ | ۵۴۷ |
|---|---|---|---|---|
| + ۱۰۰ | + ۷۰۰ | + ۲۰۰ | + ۵۰۰ | + ۳۰۰ |

## پنځه دېرشم لوست

# د درې رقمي عددونو جمعکول

هدف: زده کوونکي به ټول درې رقمي عددونه یوله بله سره جمع کړای شي.

مثال: د اماني ښوونځي یو لوی سالون د زده کوونکو دکارونو د ښودلو لپاره لري.

د سه شنبې په ورځ ۲۴۷ تنه راغلل او د چهارشنبې
په ورځ ۱۳۲ تنه راغلل.

په مجموع کې د دې سالون څخه څو تنو لیدنه کړې ده؟



سلیز لسیز یویز

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۲ | ۴ | ۷ |
| + ۱ | ۳ | ۲ |
| ۳ | ۷ | ۹ |

۹ یو ۷ لسه ۳ سله

۳۷۹

۳۷۹ تنه د لوبغاړې سالون ته راغلي دي

لومړي یویز جمع کړئ
وروسته لسیز او په پای
کې سلیز جمع کړئ.

پوښتنه: ولې موږ لومړی یویز جمع کوو؟

لومړی فعالیت: د خپل یو ټولګیوال سره کار وکړئ له یویزو څخه یې پیل کـــړئ اوجمع یې کړئ.

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۱ | ۲ | ۵ |
| + ۳ | ۳ | ۴ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۳ | ۱ | ۴ |
| + ۱ | ۲ | ۵ |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۳ | ۱ | ۶ |
| + ۲ | ۵ | ۱ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۴ | ۲ | ۲ |
| + ۵ | ۱ | ۵ |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ۲ | ۷ | ۵ |
| + ۴ | ۱ | ۹ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ۶ | ۳ | ۷ |
| + ۱ | ۶ | ۱ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ۵ | ۳ | ۸ |
| + ۱ | ۵ | ۰ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ۴ | ۵ | ۴ |
| + ۱ | ۱ | ۴ |
| | | |

دویم فعالیت: جمع یې کړئ:

| | | | | |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| ۱۲۹ + ۳۰ | ۳۴۱ + ۱۲۸ | ۱۷۰ + ۳۱۲ | ۲۰۶ + ۱۷۲ | ۶۱۲ + ۳۵ |
| ۴۰۳ + ۲۱۴ | ۱۵۹ + ۲۲۰ | ۳۲۵ + ۷۱ | ۵۰۸ + ۲۱۰ | ۴۱۲ + ۴۴ |
| ۳۳۱ + ۵۱۷ | ۱۱۱ + ۴۴۳ | ۵۳۷ + ۲۱ | ۷۷۱ + ۱۰۸ | ۸۲۳ + ۱۶۴ |

## کورنۍ دنده:

په تشو ځایونو کې مناسب عددونه ولیکئ.

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ☐ | ۱ | ☐ |
| + ۲ | ☐ | ۶ |
| ۹ | ۸ | ۹ |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ۲ | ☐ | ۶ |
| + ☐ | ۵ | ☐ |
| ۶ | ۶ | ۶ |

## شپږ دېرشم لوست

# د درې رقمي عددونو جمع کول چې حاصل ولري

هدف: زده کوونکي به وکولای شي د درې رقمي حاصل لرونکي عددونه جمع کړي.

مورږ سلیز، لسیز او یویز په لاندې توګه جمع کولای شو.

لومړۍ مرحلهٔ:
یویز رقمونه سره جمع کړئ که چېرې حاصل ولري دوروستي رقم سره يې جمع کړئ.

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۳ | ۶ | ۴ |
| ۲ | ۷ | ۳ |

$$\begin{array}{r} ۳۶۴ \\ +۲۷۳ \\ \hline ۷ \end{array}$$

دویمه مرحلهٔ:
لسیز رقمونه سره جمع کړئ که چېرې حاصل ولري دوروستي رقم سره يې جمع کړئ.

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۳ | ۱۳ | ۷ |
| ۲ | | |

$$\begin{array}{r} ۱ \\ ۳۶۴ \\ +۲۷۳ \\ \hline ۳۷ \end{array} \qquad \begin{array}{r} ۶ \\ +۷ \\ \hline ۱۳ \end{array}$$

دریمه مرحلهٔ:
دسلیزو رقمونه جمع کړئ.

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۶ | ۳ | ۷ |

$$\begin{array}{r} ۱ \\ ۳۶۴ \\ +۲۷۳ \\ \hline ۶۳۷ \end{array}$$

**فعالیت:** جمع يې کړئ او که حاصل ولري حاصل يې ونيسئ.

مثال:

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| | ١ | |
| ۶ | ۳ | ۴ |
| ۷ | ۵ | ۲ + |
| ۳ | ۹ | ۶ |

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| | | |
| ۲ | ۶ | ۱ |
| ۶ | ۳ | ۵ + |
| | | |

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| | | |
| ۹ | ۲ | ۳ |
| ۴ | ۵ | ۳ + |
| | | |

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| | | |
| ۹ | ۴ | ۲ |
| ۶ | ۳ | ۱ + |
| | | |

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| | | |
| ۹ | ۰ | ۴ |
| ۳ | ۱ | ۲ + |
| | | |

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| | | |
| ۳ | ۵ | |
| ۴ | ۵ | ۵ + |
| | | |

---

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| | | |
| ۴ | ۷ | ۲ |
| ۱ | ۶ | + |
| | | |

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| | | |
| ۳ | ۵ | ۴ |
| ۲ | ۱ | ۵ + |
| | | |

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| ۵ | ۲ | ۴ |
| ۸ | ۴ | ۵ + |
| | | |

---

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| | | |
| ۵ | ۳ | ۱ |
| ۴ | ۲ | ۵ + |
| | | |

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| | | |
| ۷ | ۴ | ۳ |
| ۲ | ۷ | + |
| | | |

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| | | |
| ۱ | ۸ | ۲ |
| ۶ | ۵ | ۳ + |
| | | |

---

**کورنۍ دنده:** حل يې کړئ.

د يوه ټولګي زده کوونکو ۳۷۸ کارتونه جوړ کړل.

د يوه بل ټولګي زده کوونکو ۲۶۵ کارتونه جوړ کړل.

د دواړو ټولګيو زده کوونکو ټول څو کارتونه جوړ کړي دي؟

**د درې رقمي عددونو د جمعې مشق او تمرین:**

**تاسو درې رقمي عددونه په لاندې توګه جمع کولای شئ.**

**په دې ډول:**

**لومړی مرحلهٔ: یویز جمع کړئ که چېرې اړتیاوې حاصل ونیسئ.**

**دویمه مرحلهٔ: لسیز جمع کړئ کــه چېرې اړتیاوې حاصل ونیسئ.**

**دریمه مرحلهٔ: سلیز سره جمع کړئ**



جمع یې کړئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ٣٧۴ | ٢۴٥ | ٥٦٧ | ١۴٩ | ١٩٢ | ٨٥ |
| +١۴٧ | +۴٥٨ | +٣٣٣ | +٧٥ | +۴۴ | +١٩٧ |
| ٣٦ | ٢٣٨ | ۴٥٥ | ٥٨٦ | ١٧٧ | ٦١۴ |
| +٧٣ | +۴۴ | +١۴٥ | +٣٦۴ | +١٦٨ | +١٨٧ |

**کورنۍ دنده:** جمع یې کړئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ١٩٨ | ٢٥٣ | ۴٩۴ | ٥١٧ | ٣۴٦ | ١٢٣ |
| +٢٦٧ | +٣٣٥ | +٣٦٣ | +۴٦٧ | +٣٦۴ | +٣۴٥ |

## اوه دېرشم لوست

### د درې رقمي عددونو تفریق

هدف: زده کوونکي به درې رقمي عددونه له درې رقمي عددونو څخه تفریق کړای شي.



لومړی یویز تفریق کړئ، دویم لسیز تفریق کړئ، دریم سلیز تفریق کړئ

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۴ | ۵ | ۷ |
| − ۳ | ۳ | ۲ |
| ۱ | ۲ | ۵ |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|

فعالیت: په ډله ییزه توګه کار وکړئ.

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۷ | ۲ | ۶ |
| − ۱ | ۱ | ۵ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۶ | ۸ | ۹ |
| − ۴ | ۷ | ۳ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۵ | ۳ | ۷ |
| − ۲ | ۱ | ۶ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۴ | ۹ | ۴ |
| − ۱ | ۰ | ۳ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۹ | ۷ | ۱ |
| − ۳ | ۲ | ۰ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۸ | ۴ | ۴ |
| − ۳ | ۲ | ۱ |
| | | |

| ۶۵۹ | ۵۷۳ | ۳۸۹ | ۴۸۷ | ۶۷۹ |
|---|---|---|---|---|
| − ۲۷ | − ۱۳۰ | − ۶۴ | − ۲۳۷ | − ۱۵۱ |

**کورنی دنده:**

| ۶۵۹ | ۶۷۳ | ۴۸۹ | ۵۸۷ | ۶۸۹ |
|---|---|---|---|---|
| − ۴۳۷ | − ۱۳۲ | − ۱۶۴ | − ۳۳۷ | − ۲۵۳ |

## اته دېرشم لوست

# د درې رقمي عددونو تفريق په پور اخيستلو سره

هدف: زده‌کوونکي به وکولای شي له يوه درې رقمي عدد څخه درې رقمي عدد چې پور اخيستلوته اړتيا ولري تفريق کړای شي.

تاسو د ۱۴۶ عدد له ۳۱۸ څخه په لاندې توګه تفريق کولای شئ.

لومړی: يويز تفريق کړئ کــه چېرې اړتيا وي د لسيزو لــه مرتبې څخه پور واخلئ (لسيز، په يوه دانه يې بدلې کړئ)

| سليز | لسيز | يويز |
|---|---|---|
| | | |

$$\begin{array}{r} ۳۱۸ \\ -۱۴۶ \\ \hline ۲ \end{array}$$

دويم: لسيز تفريـــق کړئ کــه چېـــرې اړتياوي د ســـليزو څخه پور واخلئ.

| سليز | لسيز | يويز |
|---|---|---|
| | | |

$$\begin{array}{r} ۲\;۱۱ \\ ۳۱۸ \\ -۱۴۶ \\ \hline ۷۲ \end{array} \qquad \begin{array}{r} ۱۱ \\ -۴ \\ \hline ۷ \end{array}$$

په دې لوست کې مورږ يو سلی په ۱۰ لسونو بدل کړی دی.

درېيم: سليز تفريـــق کړئ.

| سليز | لسيز | يويز |
|---|---|---|
| | | |

$$\begin{array}{r} ۲\;۱۱ \\ ۳۱۸ \\ -۱۴۶ \\ \hline ۱۷۲ \end{array}$$

فعاليت: د خپل يوه ټولګيوال سره کار وکړئ لومړی يويز تفريق کـــړئ کــه چېرې پور اخستلو ته اړتيا وي د لسيزو له مرتبې څخه پور واخلئ.

| سليز | لسيز | يويز |
|---|---|---|
| ☐ | ۸ | ۱۵ |
| ۶ | ۹ | ۵ |
| − ۲ | ۴ | ۸ |
| ۴ | ۴ | ۷ |

| سليز | لسيز | يويز |
|---|---|---|
| ☐ | ☐ | ☐ |
| ۷ | ۴ | ۵ |
| − ۵ | ۳ | ۱ |
| | | |

| سليز | لسيز | يويز |
|---|---|---|
| ☐ | ☐ | ☐ |
| ۴ | ۶ | ۱ |
| − ۲ | ۵ | ۳ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | □ | □ |
| ۵ | ۳ | ۷ |
| − ۳ | ۱ | ۹ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | □ | □ |
| ۷ | ۲ | ۱ |
| − ۴ | ۱ | ۴ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| | | |
| ۴ | ۲ | ۹ |
| − ۱ | ۶ | ۱ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | □ | □ |
| ۶ | ۴ | ۵ |
| − ۲ | ۱ | ۸ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | □ | □ |
| ۵ | ۸ | ۹ |
| − | ۹ | ۲ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| | | |
| ۷ | ۴ | ۱ |
| − ۲ | ۳ | ۰ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | □ | □ |
| ۸ | ۴ | ۶ |
| − | ۹ | ۵ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | □ | □ |
| ۹ | ۳ | ۶ |
| − ۴ | ۲ | ۶ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | □ | □ |
| ۷ | ۵ | ۹ |
| − ۶ | ۱ | ۳ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | □ | □ |
| ۴ | ۵ | ۰ |
| − ۳ | ۶ | ۰ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | □ | □ |
| ۵ | ۳ | ۷ |
| − | ۶ | ۴ |
| | | |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | □ | □ |
| ۷ | ۲ | ۵ |
| − | ۹ | ۱ |
| | | |

**کورنی دنده:** په تشو ځایونو کې مناسب عددونه ولیکئ.

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۵ | □ | ۷ |
| − ۲ | ۴ | □ |
| ۳ | ۰ | ۹ |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۵ | □ | ۷ |
| − ۲ | ۴ | □ |
| □ | ۸ | ۹ |

## دپور اخیستلو په صورت کې د تفریق مشق او تمرین

تاسو درې رقمي عددونه په لاندې توگه تفریق کولای شئ.

لومړۍ مرحلهٔ: یویز تفریـــق کړئ که چېرې اړتیاوې پور واخلئ .

دویمه مرحلهٔ : لسیز تفریق کړئ که چېرې اړتیاوې پور واخلئ .

دریمه مرحلهٔ: سلیز تفریق کړئ.

| لومړۍ مرحله | دویمه مرحله | دریمه مرحله |
|---|---|---|
| ۶۴۲ − ۲۶۷ = ۵ (۱۲ − ۷ = ۵) | ۶۴۲ − ۲۶۷ = ۷۵ (۱۳ − ۶ = ۷) | ۶۴۲ − ۲۶۷ = ۳۷۵ |

فرق یې ۳۷۵ دی

تفریق یې کړئ.

۳۴۶ − ۱۶۳    ۵۱۶ − ۳۵۵    ۴۲۹ − ۱۵۶    ۸۴۰ − ۴۱۵    ۸۳۷ − ۴۷۲    ۴۱۷ − ۳۳۲

۷۶۳ − ۲۸۴    ۴۸۰ − ۱۲۶    ۵۹۳ − ۳۲۸    ۹۶۳ − ۷۸۹    ۷۵۴ − ۶۵۷    ۸۱۶ − ۴۳۲

**کورنۍ دنده:** تفریق یې کړئ.

۶۵۵ − ۳۷۷    ۵۷۶ − ۱۳۸    ۳۶۵ − ۱۸۷    ۵۷۴ − ۱۸۸    ۷۲۵ − ۲۵۶    ۹۳۲ − ۵۵۶

## نه دېرشم لوست

### د درې رقمي عددونو تفریق چې یویز او لسیز یې صفر وي

هدف: زده کوونکي به دصفر لرونکي درې رقمي عددونو څخه درې رقمي عددونه تفریق کړای شي.

تاسو د صفر لرونکو عددونوڅخه د نورو عددونو تفریق په لاندې ډول کولای شئ.

لومړی مرحلهٔ: یویز تفریق کړئ ځرنګه چې لسیز رقم صفر دی چې په یویزو بدلیدای نشي.



۴۰۰
− ۱۳۶

دویمه مرحلهٔ: سلیز په لسونو سره بدل کړئ لکه مقابل شکل:



۳ ۱۰
۴۰۰
− ۱۳۶

دریمه مرحلهٔ: یولسی په ۱۰ یودانه یې سره بدل کړئ.



۳ ۹ ۱۰
۴۰۰
− ۱۳۶

څلورمه مرحلهٔ: تفریق یې کړئ.



۳ ۹ ۱۰
۴۰۰
− ۱۳۶
۲۶۴

فعالیت: پورته حل شوی مثال په نظر کې ونیسئ او تفریق یې کړئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۸۱۰ (۷)(۱۰)(۱۰) | ۵۴۰ | ۴۰۰ | ۷۰۰ | ۶۰۳ | ۵۰۶ |
| − ۳۲۵ | − ۲۷۳ | − ۱۵۸ | − ۳۶۳ | − ۴۸۹ | − ۴۹ |
| ۴۸۵ | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۳۰۰ | ۹۰۸ | ۷۰۰ | ۵۰۰ | ۳۰۰ | ۲۷۰ | ۹۰۳ |
| − ۱۲۳ | − ۲۸۰ | − ۵۴۰ | − ۱۲۴ | − ۳۷ | − ۲۰۷ | − ۳۲۴ |

## د دریو رقمي عددونو د جمعې او تفریق مشق او تمرین:




آیا تاسو کولای شئ پوښتنوته ځوابونه ووایاست؟

د شکلونو څخه په ګټې اخیستو سره تش ځایونه په مناسبو عددونو ډک کړئ.



____ سله = ____ سله + ____ سله

____ = ____ + ____





____ سله ____ لسه ____ یودانه یي

____ سله ____ لسه ____ یودانه یي +

____ سله ____ لسه ____ یودانه یي

☐ + ☐ = ☐

د قانون څخه په کار اخیستنې سره لاندې جدولونه بشپړ کړئ.

| ۲۰۰ جمع کړي | |
|---|---|
| ۲۲۰ | |
| ۶۷۰ | |
| ۵۱۰ | |
| ۱۷۰ | |

| ۴۰۰ جمع کړي | |
|---|---|
| ۵۰۰ | |
| ۳۵۰ | |
| ۴۳۰ | |
| ۵۷۰ | |

| ۳۰ جمع کړي | |
|---|---|
| ۷۳۰ | |
| ۸۷۰ | |
| ۱۹۰ | |
| ۴۲۰ | |

جمع یې کړئ.

| يويز | لسيز | سليز |
| --- | --- | --- |
| | ☐ | ☐ |
| ۳ | ۷ | ۶ |
| ۹ | ۱ | + |

| يويز | لسيز | سليز |
| --- | --- | --- |
| | ☐ | ☐ |
| ۵ | ۲ | ۴ |
| ۸ | ۴ | ۳ + |

| يويز | لسيز | سليز |
| --- | --- | --- |
| | ☐ | ☐ |
| ۶ | ۷ | ۲ |
| ۵ | ۴ | ۱ + |

تفريق یې کړئ.

| يويز | لسيز | سليز |
| --- | --- | --- |
| ☐ | ☐ | ☐ |
| ۷ | ۳ | ۸ |
| ۵ | ۲ | ۲ − |

| يويز | لسيز | سليز |
| --- | --- | --- |
| ☐ | ☐ | ☐ |
| ۷ | ۳ | ۳ |
| ۱ | ۶ | − |

| يويز | لسيز | سليز |
| --- | --- | --- |
| ☐ | ☐ | ☐ |
| ۶ | ۲ | ۵ |
| ۸ | ۴ | ۱ − |

جمع يا تفريق یې کړئ.

| | | | | | |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ۷۶۲ | ۸۲۳ | ۳۲۴ | ۷۰۰ | ۳۲۴ | ۱۲۷ |
| − ۵۷۱ | + ۶۹ | − ۳۲ | − ۲۱۱ | + ۲۵۸ | + ۵۸۴ |

| | | | | | |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ۴۹۵ | ۳۰۷ | ۵۵۷ | ۶۸۳ | ۵۹۱ | ۷۰۰ |
| + ۱۰۸ | − ۱۲۲ | − ۳۲۹ | + ۷۷ | − ۱۰۳ | − ۳۳۱ |

**کورنۍ دنده:**

| | | | | | |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ۴۹۹ | ۹۴۷ | ۲۷۴ | ۶۰۱ | ۱۳۹ | ۲۹۰ |
| + ۲۰۱ | − ۳۵۸ | + ۶۶۶ | − ۱۲۷ | + ۴۸۳ | + ۵۷۵ |

# اووم فصل

# د عددونو ضرب او وېش عمليې

## څلوېښتم لوست

### د ضرب مفهوم

هدف: دا لوست به زده کوونکي چمتو کړي، ترڅو د ضرب او تقسيم مفهومونه په ښه آسانۍ سره زده کړي.






۸ ډبرې ۶ ډبرې ۴ ډبرې ۲ ډبرې

ټوله ۸

متناوب شمېرل يعنې د عين عدد جمع کول په تکراري توګه.

لومړی فعاليت: د خپل يوه ټولګيوال سره کار وکړئ، کوچنۍ ډبرې وکاروئ او له هغې څخه مساوي ګروپونه جوړ کړئ، متناوب شمېر ورکړئ، او مجموعه يې و ليکئ؟

| | |
|---|---|
| ۵ وارې ۲، ۲ زيات کړئ<br>۲ ، ۴ ، ۶ ، ۸ ، ۱۰<br>ټوله ____ | ۴ وارې ۴، ۴ زيات کړي<br>____ ، ____ ، ____ ، ____<br>ټوله ____ |
| ۳ وارې ۵ ، ۵ زيات کړئ<br>____ ، ____ ، ____<br>ټوله ____ | ۴ وارې درې، درې زيات کړئ.<br>____ ، ____ ، ____ ، ____<br>ټوله ____ |
| ۵ وارې ۳ ، ۳ زيات کړئ<br>____ ، ____ ، ____ ، ____ ، ____<br>ټوله ____ | ۴ وارې ۵ ، ۵ زيات کړئ.<br>____ ، ____ ، ____ ، ____ ، ____<br>ټوله ____ |

**دويم فعاليت: دوه بکسه هر يو يې شپږ هګۍ لري**









د چرګې ټولې ۱۲ هګۍ

**د چرګې هګۍ رسم کړئ، متناوب شمېر يې وکړئ او ويې ليکئ څومره؟**

۲ بکسونه، هر بکس ۳ هګۍ لري



د چرګې ټولې ٦ هګۍ

۴ بکسونه،هر بکس ۵ هګۍ لري

د چرګې ټولې ــــــ هګۍ

۲ بکسونه، هر بکس ۴ هګۍ لري

د چرګې ټولې ــــــ هګۍ

۳ــ ۴ بکسونه، هر بکس ۴ هګۍ لري

د چرګې ټولې ــــــ هګۍ

۳ بکسونه، هر بکس ٦ هګۍ لري

د چرګې ټولې ــــــ هګۍ

٦ بکسونه، هر بکس ۳ هګۍ لري

د چرګې ټولې ــــــ هګۍ

**کورنۍ دنده:** ۴ چرګان هر يو يې ۲ پښې لري په يوه ونه باندې ناست دي شکل يې رسم کړئ، متناوب شمېر يې وکړئ او ويې ليکئ ټولې څو پښې دي؟

ــــــ ، ــــــ ، ــــــ ، ــــــ

ټولې ــــــ پښې

## یوڅلوېښتم لوست

### دهغو عددونو جمع کول چې مساوي اجزاوې ولري (تکراري جمع)

هدف: د جمعې د مساوي اجزاوو څخه په ګټې اخیستنې سره د زده کوونکو چمتوکول د ضرب د زده کړې لپاره

د منو مساوی ګروپونه جمع کوو، تر څو مجموعه يې پيدا ګړو.

مساوي ګروپونه څه ډول جوړولی شئ

۱۲ = ۳ + ۳ + ۳ + ۳



۳ دانه يي ۴ ګروپونه = ۱۲

لومړی فعالیت: ویې لیکئ څومره؟



۱۵ = ۵ + ۵ + ۵

۵د دانه يي ۳ ګروپونه = ۱۵



___ = ___ + ___ + ___

___ ګروپه د ___ = ___



___ = ___ + ___

___ ګروپونه د ___ = ___



___ = ___ + ___

___ ګروپونه د ___ = ___



___ = ___ + ___ + ___

___ ګروپونه د ___ = ___



___ = ___ + ___

___ ګروپونه د ___ = ___

دویم فعالیت: جمع یې کړئ، ویې لیکئ چې څومره کېږي؟



___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___



___ + ___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___



___ + ___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___



___ + ___ + ___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___



___ + ___ + ___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___



___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___



___ + ___ + ___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___



___ + ___ + ___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___

**کورنۍ دنده** : جمع یې کړئ، ویې لیکئ چې څومره کېږي؟



___ + ___ + ___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___

## دوه څلویښتم لوست

## ضرب

هدف: زده کوونکي به د ضرب عملیه زده کړي او علامه يې وپېژني.

که چیرې ګروپونه مساوي او هم جنسه وي هغه جمع یا ضرب کولای شو، ترڅو چې مجموعه يې پیدا شي.

۴ + ۴ + ۴

۳ واري څلور

۳× ۴ = ۱۲

۱۲ حاصل ده

دا × نښه د ضرب ده

۳ واري ۴ مساوي له ۱۲ هلته په ۳ ګلدانیوکې ۱۲ ګلان دي.

لومړی فعالیت: په ډله ئیزه توګه کار وکړئ جمع یا ضرب يې کړئ، ترڅوچې مجموعه يې پیداکړئ.

مثال:۴ ګروپونه د۳ دانه يې څو چوغکۍ کېږي؟



۳ + ۳ + ۳ + ۳ = ۱۲

۳ واري ۴ = ۱۲

یا ۴ × ۳ = ۱۲ چوغکې

___ + ___ + ___ = ___

___ پنځه = ___

___ × ___ = ___ سپي

۲ ګروپونه د۳ دانه يې څومره مېزونه کېږي؟



___ + ___ = ___

___ درې = ___

___ × ___ = ___ مېزونه



___ + ___ + ___ = ___

___ یو = ___

___ × ___ = ___ بایسکلونه

## دویم فعالیت:

۱− دجمعي دافادو له مخې د ضرب د افادو تش ځایونه ډک کړئ.

□ = ۱×۲ یا ۲ = ۱ + ۱

۳ = □ ×۳ یا ۳ = ۱ + ۱+۱

۴ = □ ×۴ یا ۴ = ۱ + ۱ + ۱ + ۱

۸ = □ ×۴ یا ۸ = ۲ + ۲ + ۲ + ۲

۱۵ = □ ×۵ یا ۱۵ = ۳ + ۳ + ۳ + ۳ +۳

۲− جمع او ضرب يې کړئ، ترڅو حاصل يې پيداکړئ.



۴ + ۴ + ۴ =۱۲

۳ گرووپونه د ۴ = ۱۲

۳ واري څلور = ۱۲

یا ۳ × ۴ = ۱۲ قفله

ټول څو موټرونه دي؟



___ + ___ + ___ = ___

___ گرووپونه د ___ = ___

___ درې = ___

موټره ___ = ___ × ___

ټولې څومره کوترې دي؟



___ + ___ = ___

___ ګروپونه د ___ = ___

___ پنځه = ___

یا ___ × ___ = ___ کوترې

ټول څو داني ګېلاسونه دي؟



___ + ___ + ___ + ___ = ___

___ ګروپونه د ___ = ___

___ درې = ___

یا ___ × ___ = ___ ګېلاس

**کورنۍ دنده:**

ټول څو داني ګلان دي؟



___ + ___ + ___ + ___ = ___

___ ګروپونه د ___ = ___

___ پنځه = ___

یا ___ × ___ = ___ ګلونه

ټول څوداني خټکي دي؟



___ + ___ = ___

___ ګروپونه د ___ = ___

___ څلور = ___

یا ___ × ___ = ___ خټکي

# درې څلویښتم لوست

## د کتارونو جوړول

هدف: زده کوونکي به وپوهيږي که چېرې دجمعې اجزاوې مساوي نه وي دجمعې عمليه په ضرب باندې بدليدلای نشي.

په ياد يې ولرئ چې کتارونه له کيڼې خواڅخه ښي له پورته خوا څخه کښته خواته په مخ ځي.



په دې کتارونو کې د رنګ شويو مربعاتو مختلف شمېر شتون لري.
د رنګ شوو مربع ګانو قطار منظم نه دي.
مونږ هغه ضربولی نشو.

– پورته مربع ۵ افقي قطاره او ۵ عمودي قطاره لري.
– ۳ عمودي قطاره او ۴ افقي قطاره رنګ شوي دي.
– د رنګ شوو مربع ګانو شمير مساوی دی له:
(رنګه مربع ګانې) ۱۲ = ۴ × ۳

هر زده کوونکی دې په خپله خوښه کتارونه رنګ کړي او دهغوي شميردې وښيئ.

له پورته څخه کښته خواته ______
قطارونه له کيڼ څخه ښي خواته ______
حاصل ______

له پورته څخه کښته خواته ______
قطارونه له کيڼ څخه ښي خواته ______
حاصل ______

له پورته څخه کښته خواته ______
قطارونه له کيڼ څخه ښي خواته ______
حاصل ______

له پورته څخه کښته خواته ______
قطارونه له کيڼ څخه ښي خواته ______
حاصل ______

دویم فعالیت: مساوي کتارونه رنګه کړئ او دهغوي شمېر معلوم کړئ.

۳ کتاره د۴ وښيئ



۳ کتاره
۴ په هر کتار کې
۳ × ۴ = ۱۲

۴ کتاره د۲ وښيئ



___ کتاره
___ په هر کتار کې
۴ × ۲ = ___

۴ کتاره د۵ وښيئ



___ کتاره
___ په هر کتار کې
۴ × ۵ = ___

۵ کتاره د۵ وښيئ



___ کتاره
___ په هر کتار کې
۵ × ۵ = ___



___ کتاره
___ په هر کتار کې
۲ × ۳ = ___



___ کتاره
___ په هر کتار کې
۳ × ۵ = ___

**کورنۍ دنده:**

۱. داسې شکلونه رسم کړئ چې ۳×۵ وښيي
۲. داسې شکلونه رسم کړئ چې ۵ × ۷ وښيي

## څلور څلويښتم لوست

# په ضرب کې د بدلون خاصيت

هدف: زده کوونکي به په دې پوه شي که چېرې د ضرب د اجزاو ځايونه بدلون وکړي د ضرب په حاصل کې بدلون نه راځي.

تاسو عددونه په لاندې ډول ضرب کولای شئ چې عين حاصل ولري.








۲ × ۴ = ۸ ۴ × ۲ =۸

لومړی فعالیت: مساوي کتارونه جوړ کړئ، هر کتار رنګ کړئ او حاصل يې پيداکړئ.




۵ × ۳ =۱۵ ، ۳ × ۵ =۱۵




۳× ۴ = ــــ ، ۴ ×۳ = ــــ




۳× ۲ = ــــ ، ۲ ×۳= ــــ




۵× ۱ = ــــ ، ۱ ×۵ = ــــ




۴× ۵ = ــــ ، ۵ ×۴= ــــ




۴× ۲ = ــــ ، ۲ ×۴= ــــ

**دویم فعالیت:** د ضرب حاصل پیداکړئ.




۵ × ۳ = ___ ، ۳ × ۵ = ___

۲ × ۵ = ___ ، ۵ × ۲ = ___

عددونه ولیکئ او کتارونه یې رنګ کړئ. د ضرب ډول، ډول پوښتنې ولیکئ.




___ × ___ = ___

___ × ___ = ___

وړې ډبرې استعمال کړئ، ترڅو له تاسو سره د ضرب د حاصل په پیدا کولو کې مرسته وکړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۴ × ٦ = ___ | ۲ × ۹ = ___ | ۴ × ۵ = ___ |
| ٦ × ۴ = ___ | ۹ × ۲ = ___ | ۵ × ۴ = ___ |

**کورنۍ دنده:** د لاندې پوښتنو د ضرب حاصل په لاس راوړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۲ × ۷ = ___ | ۳ × ٦ = ___ | ۸ × ۳ = ___ |
| ۷ × ۲ = ___ | ٦ × ۳ = ___ | ۳ × ۸ = ___ |

# پنځه څلوېښتم لوست

## په عمودي شکل ضرب کول

هدف: زده کوونکي به سربېره په افقي (په يوه ليک کې) ډول د ضرب په عمودي ډول (يوتربل لاندې) هم پوه شي





کله چې ضرب کوئ تاسو
دضرب عمليه په دوه ډوله
ليکلای شئ.

$۴ \times ۳ = ۱۲$

په هر کتار کې ۴ مڼې
کتارونه ۳ ×
توله ۱۲ داني مڼې

**لومړی فعاليت:** دضرب حاصل پيداکړئ.۲کتاره، دې هر کتار۷ دانه يې. ۴ گروپونه، هر گروپ کې ۲ داني پيالې.



$۷ \times ۲ = ۱۴$

۷
کتاره × ۲
۱۴



گروپ

۴
× ۲

$۴ \times ۲ =$ ___

۵ گروپونه،هر گروپ کې ۳ داني پاڼې.



گروپ

۵
× ۳

$۵ \times ۳ =$ ___

۳ کتاره، هر کتار کې ٦ توپونه.



۳
گروپ × ۶

$۳ \times ٦ =$ ___

**دویم فعالیت:**

۲ کتاره، په هر کتار کې ۸ دایرې.



۸ × ۲ = ۱۶

$$\begin{array}{r} ۸ \\ \times\ ۲ \\ \hline ۱۶ \end{array}$$

۴ گروپونه، په هر گروپ کې ۵ هگۍ



___ = ___ × ___

۴ کتارونه، په هر کتار کې۴ دایرې



___ = ___ × ___

۵ کتاره، په هر کتار کې ۲ دایرې.



___ = ___ × ___

له محیطي موادو څخه گټه واخلئ او ضرب یې کړئ.

| ۲<br>× ۲ | ۵<br>× ۲ | ۳<br>× ۴ | ۷<br>× ۲ | ۲<br>× ۷ | ۴<br>× ۲ | ۷<br>× ۱ |
|---|---|---|---|---|---|---|

**کورنۍ دنده:**

۴ × ۳ = ___ ، ۳ × ۳ = ___ ، ۲ × ۳ = ___

۴ × ۴ = ___ ، ۳ × ۴ = ___ ، ۲ × ۴ = ___

## شپږ څلوېښتم لوست

## د شکلونو څخه په کار اخیستلو سره د ضرب ښوونه

هدف: دشیانو په کارولو سره په زده کوونکي د۲ ژبنۍ ضرب زده کړي او خپلوحافظوته به يې وسپاري.

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ★★ | ۲ | | | | | | | | | |
| ۲ | ★★ | ★★ | ۴ | | | | | | | | |
| ۳ | ★★ | ★★ | ★★ | ۶ | | | | | | | |
| ۴ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ۸ | | | | | | |
| ۵ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ۱۰ | | | | | |
| ۶ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ۱۲ | | | | |
| ۷ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ۱۴ | | | |
| ۸ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ۱۶ | | |
| ۹ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ۱۸ | |
| ۱۰ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ★★ | ۲۰ |

۱ × ۲ = ۲

۲ × ۲ = ۴

۳ × ۲ = ٦

۴ × ۲ = ۸

۵ × ۲ = ۱۰

٦ × ۲ = ۱۲

۷ × ۲ = ۱۴

۸ × ۲ = ۱٦

۹ × ۲ = ۱۸

۱۰ × ۲ = ۲۰

**لکه د۲ ضرب د۳ ضرب هم د شکل له مخې په لاندې توگه په لاس راوړو.**




۳=۱×۳=۳

۳+۳=۲×۳=۶

۳+۳+۳=۳×۳=۹

۳+۳+۳+۳=۴×۳=۱۲

۳+۳+۳+۳+۳=۵×۳=۱۵

۳+۳+۳+۳+۳+۳=۶×۳=۱۸

۳+۳+۳+۳+۳+۳+۳=۷×۳=۲۱

۳+۳+۳+۳+۳+۳+۳+۳=۸×۳=۲۴

۳+۳+۳+۳+۳+۳+۳+۳+۳=۹×۳=۲۷

۳+۳+۳+۳+۳+۳+۳+۳+۳+۳=۱۰×۳=۳۰

**فعالیت:**

**له حل شوي مثال څخه په کار اخیستلو سره لاندې تش ځایونه ډک کړئ.**

**۳ × [۲] = ۶**

**۳ × [ ] = ۹**

**۳ × [ ] = ۱۲**

**۳ × ۵ = [ ]**

**[ ] × ۶ = ۱۸**

## د ۵ ضرب

۱ × ۵ = ۵

۲ × ۵ = ۱۰

۳ × ۵ = ۱۵

۴ × ۵ = ۲۰

۵ × ۵ = ۲۵

۶ × ۵ = ۳۰

۷ × ۵ = ۳۵

۸ × ۵ = ۴۰

۹ × ۵ = ۴۵

۱۰ × ۵ = ۵۰

## د ۴ ضرب

۱ × ۴ = ۴

۲ × ۴ = ۸

۳ × ۴ = ۱۲

۴ × ۴ = ۱۶

۵ × ۴ = ۲۰

۶ × ۴ = ۲۴

۷ × ۴ = ۲۸

۸ × ۴ = ۳۲

۹ × ۴ = ۳۶

۱۰ × ۴ = ۴۰

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې دلاندې شکلونو له مخې ضرب بشپړ کړي.



_____ × _____ = _____



_____ × _____ = _____



___ × ___ = ___

## اوه څلوېښتم لوست

### د ضرب عبارتي پوښتنې

**هدف:** زده کوونکي به د عبارتي پوښتنو په مفهوم وپوهېږي او د رياضي افاده به يې وليکي.

**د ضرب د عمليې څخه په کار اخيستلو سره ٦ پوښتنې حل کړئ عددي جملې يې وليکئ او د ضرب حاصل يې پيدا کړئ.**

۱. د مرسل په بوټي کې ۳ سره ګلونه دي او هر ګل ٦ پاڼې لري، ټولې څو پاڼې لري؟

_____ = _____ × _____

_____ د ګل پاڼې

۲. جميله کباب پخوي او هغې دکباب ٦ سيخونه پاخه کړي دي، د کباب هر سيخ يې ۴ ټوټې غوښه لري ټوله څو ټوټې غوښه کېږي؟

_____ = _____ × _____

ټوله _____ ټوټې غوښه

۳. زيبا ۵ ګلدانۍ لري په هره ګلدانۍ کې يې دوه د ګلانو بوټي کېنول، د ګلانو ټول شمېر څو کېږي.

_____ = _____ × _____

ټوله _____ بوټي

۴. يو بڼوال غواړي په هر کتار کې د خټکيو ۴ تخمه کېنوي ۳ کتاره يې پوره کړي دي، په آخر کتار کې يې يوازې دوه تخمه کېنولي، ټول څو تخمه کېږي؟

_____ = _____ × _____

ټوله _____ تخمه

**کورنۍ دنده:**

په خپلو کتابچو کې حل کړي.

۳× ٦ = ?      ۲ × ۵ = ?

## اته څلوېښتم لوست

# په دوه رقمي عدد کې د یوه رقمي عدد ضربول

هدف: زده کوونکي به یو رقمي عدد په دوه رقمي عدد کې ضرب کړای شي اوپه عین وخت کې د ضرب اجزاوې اود ضرب حاصل وپېژني.

لاندې مثال په نظر کې نیسو، په شکل کې لیدل کېږي چې ۱۳ کتار جوړ شوي دي او په هر کتار کې ۲ خانې تورې شوې دي چې د جمعې د دوو مساوي اجزاوو په توګه یې لیکو

۱۳ + ۱۳ = ۲۶

یا ۱۳ × ۲ = ۲۶

د ضرب حاصل　　د ضرب دویم جز　　د ضرب لومړی جز

اوس غواړو پورتنی مثال د یوې ضربي افادې په توګه ولیکو او ضرب یې کړو.

یویز　لسیز

۱۳ ← دضرب لومړی جز

× ۲ ← دضرب دویم جز

لومړی د۲ عدد په یویزو یعنې ۳ کې ضرب کوو چې ۶ کېږي او هغه د ضرب د حاصل د یویزو په ځای کې لیکو.

$$\begin{array}{r} ۱۳ \\ \times\ ۲ \\ \hline ۶ \end{array}$$

**وروسته د۲ عدد په لسیزو یعنې ۱ کې ضرب کوو داچې ۱ د لسیزو په ځای کې شتون لري، یو لسی دی، د۲ سره د هغه د ضرب حاصل د۲ عدد نه دی، خو ۲ لسیه یعنې ۲۰ دي.**

$$\begin{array}{r} ۱۳ \\ \times\ \ ۲ \\ \hline ۶ \\ ۲۰ \end{array}$$

**چې د دې دواړو له جمع کولو وروسته د ضرب حاصل په لاس راځي.**

$$\begin{array}{r} ۱۳ \\ \times\ \ ۲ \\ \hline ۶ \\ +۲۰ \\ \hline ۲۶ \end{array}$$

دضرب حاصل

**لومړی فعالیت: غواړو د۱۲ عدد په ۴ کې ضرب کړو.**

| یویز | لسیز |
|---|---|
| ۲ | ۱ |

$$\begin{array}{r} ۱۲ \\ \times\ \ ۴ \\ \hline \end{array}$$

**لکه مخکنی مثال ۴ په یویزو کې ضرب کوو چې ۸ حاصلیږي یعنې:**

$$\begin{array}{r} ۱۲ \\ \times\ \ ۴ \\ \hline ۸ \end{array}$$

**اوس د ۴ عدد په لسیزوکې چې په حقیقت کې (۱) لسي دی، ضرب کوو چې د هغه د ضرب حاصل ۴ کیږي. په دې باید پوه شو چې۴، دي، خو څلور لسیه دي او هغه د لسیزو په ځای کې لیکو یعنې:**

$$\begin{array}{r} ۱۲ \\ \times\ \ ۴ \\ \hline ۴۸ \end{array}$$

**حاصل شوی عدد ۴۸ دی چې د ۸ یویزو او ۴ لسیزو څخه عبارت دی.**

**دویم فعالیت: غواړو د ۱۳ عدد د ۵ په عدد کې ضرب کړو.**

| یویز | لسیز |
|---|---|
| ۳ | ۱ |

$$\begin{array}{r} ۱۳ \\ \times\ ۵ \\ \hline \end{array}$$

**لومړی د ۵ عدد په یویزو یعنې (۳) کې ضرب کوو چې د هغو د ضرب حاصل ۱۵ کېږي، د ۱۵ د یویزو رقم یعنې ۵ د ضرب د حاصل د یویزو په ځای کې لیکو او د هغه د لسیزو رقم چې (۱) لسی دی د حاصل په توګه د ۱۳ د لسیزو د مرتبې پورته یې لیکو.**

**کوم وخت چې ۵ د لسیزو په مرتبه یعنې (۱) کې ضرب کړو، د حاصل شوي یادداښت سره یې جمع کوو چې د٦ عدد په لاس راځي او د ٦ عدد د ضرب د حاصل د لسیزو په مرتبه کې لیکو چې ٦۵ حاصل کېږي.**

$$\begin{array}{r} ① \\ ۱۳ \\ \times\ ۵ \\ \hline ۶۵ \end{array} \quad ۱۵$$

**کورنۍ دنده:**

**د لاندې پوښتنو د ضرب حاصل په لاس راوړئ.**

$$\begin{array}{r} ۲۵ \\ \times\ ۴ \\ \hline \end{array} \quad \begin{array}{r} ۱۴ \\ \times\ ۵ \\ \hline \end{array} \quad \begin{array}{r} ۱۷ \\ \times\ ۳ \\ \hline \end{array} \quad \begin{array}{r} ۱۶ \\ \times\ ۵ \\ \hline \end{array} \quad \begin{array}{r} ۱۸ \\ \times\ ۴ \\ \hline \end{array} \quad \begin{array}{r} ۲۱ \\ \times\ ۲ \\ \hline \end{array}$$

## نهه څلوېښتم لوست

### د ضرب په عملیه کې د(۱) د عدد خاصیت

هدف: زده کوونکي په پوه شي چې(۱) په هر عدد کې ضرب شي د ضرب حاصل يې هم هغه عدد دی.

په تېر لوست کې مو ولوستل چې:

۱ + ۱ = ۲   یا  ۲ × ۱ = ۲

۱ + ۱ + ۱ = ۳ یا ۳ × ۱ = ۳

۱ + ۱ + ۱ + ۱ = ۴ یا ۴ × ۱ = ۴

۱+ ۱ + ۱ + ۱ + ۱ = ۵ یا ۵ × ۱ = ۵

دا لوست موږ په دې پوهوي هر عدد چې په (۱) کې ضرب شي د ضرب حاصل یې په خپله هم هغه عدد کېږي یعنې:

٦ × ۱ = ٦

۷ × ۱ = ۷

۸ × ۱ = ۸

۲۵ ×۱ = ۲۵

**کورنۍ دنده:** لاندې سوالونه په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

□ × ۱ = ۵   ،   ۱۲ × □ = ۱۲

۱۷ × ۱ = □   ،   ۳۵ × ۱ = □

## پنځوسم لوست

## د ضرب په عملیه کې د (۰) صفر خاصیت

هدف: زده کوونکي به پوه شي هر عدد چې په صفر کې ضرب شي د ضرب حاصل يې صفر دی.

مور پوهېږو چې په یوازې توګه صفر په معنا د هیڅ دی، په هره اندازه چې د صفرونو شمېر زیات شي بیا هم هیڅ دی یعنې:

۰ = ۰ × ۱ = ۰

۰ = ۰ × ۲ یا ۰ = ۰ + ۰

۰ = ۰ × ۳ یا ۰ = ۰ + ۰ + ۰

۰ = ۰ × ۴ یا ۰ = ۰ + ۰ + ۰ + ۰

۰ = ۰ × ۵ یا ۰ = ۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰

په همدې ډول:

۰ = ۰ × ٦

۰ = ۰ × ۷

۰ = ۰ × ۸

۰ = ۰ × ۹

د پورتني مثال له مخې ویلای شو هر عدد چې په صفر کې ضرب شي د هغه د ضرب حاصل صفر دی.

**کورنۍ دنده:**

۱– د جمعې افادې په ضرب باندې بدلې کړئ.

=۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰

=۰+ ۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰

۲– دا افادې په جمع باندې بدلې کړئ.

= ۰ × ۹

= ۰× ۱۱

## یو پنځوسم لوست

# د گروپونو جوړول

هدف: دا لوست به زده کوونکي د ویش د عملیې لپاره چمتو کړي.

د خپل یوه ملگري سره کار وکړئ

۲۰ کوچنۍ ډبرې استعمال کړئ.

مساوي گروپونه جوړ کړئ.

په شکل کې څو گروپونه دي؟

څومره کوچنۍ ډبرې پاتې دي؟

لومړی فعالیت: په جوړه یي توگه کار وکړئ، هره جوړه دې ۲۰ کوچنۍ ډبرې استعمال کړي، عددونه ولیکئ.

| | عملیه | مساوي گروپونه | د کوچنیو ډبرو پاتې |
|---|---|---|---|
| ۱ | د ۴ گروپونو جوړول | ۵ | ۰ |
| ۲ | د ۵ گروپونو جوړول | | |
| ۳ | د ۲ گروپونو جوړول | | |
| ۴ | د ۸ گروپونو جوړول | | |
| ۵ | د ۳ گروپونو جوړول | | |
| ۶ | د ٦ گروپونو جوړول | | |
| ۷ | د ۱۲ گروپونو جوړول | | |

**دویم فعالیت:** ویې لیکي څو گروپونه کېږي او څو پاتې کېږي؟



_____ گلان

د هرو ۵ گلانو په شاوخوا دایره وکاږئ.

_____ گروپونه

_____ پاتې



_____ توپ.

د هرو ۳ توپونو په شاوخوا دایره وکاږئ.

_____ توپونه

_____ پاتې



_____ خزندې.

د هرو ۴خزندو په شاوخوا دایره وکاږئ

_____ گروپونه

_____ پاتې



_____ پاڼې.

د هرو ٦ پاڼو په شاوخوا دایره وکاږئ.

_____ گروپونه

_____ پاتې

**کورنۍ دنده:** لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړئ او له ځان سره يې راوړئ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱۷۴ | ۶ | ۳۲ | ۵۶۷ | ۲۸ |
| ۳۴۸ + | ۲ × | ۲۹ + | ۲۱ − | ۹ − |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۷۱۲ | ۵ | ۷۲ | ۳۶ | ۴ |
| ۲۲۷− | ۲ × | ۱۷ − | ۱۸ + | ۳ × |

## دوه پنځوسم لوست

# د مساوی ګروپونو جوړول

هدف: دا لوست زده کوونکي د ویش د عملیې زده کړې ته چمتو کوي.

**لومړی فعالیت:له یو ټولګیوال سره کار و کړئ.**

**له ۲۴ کوچنیو ډبرو څخه:**

لومړۍ مرحلهٔ: مساوي ګروپونه جوړ کړئ




دویمه مرحلهٔ: د هرګروپ لپاره یوچوکاټ رسم کړئ د هرشي یا قلم لپاره یوه نښه وټاکئ.



په هر ګروپ کې ۱۲ دي

۲ ګروپونه د۱۲ په ۲۴ کې شتون لري

---

**دویم فعالیت: لوبې ته ادامه ورکړئ! ۲۴ کوچنۍ ډبرې استعمال کړئ. مساوي ګروپونه جوړ کړئ. دهر ګروپ لپاره یو چوکاټ رسم کړئ.**

---

مثال:

په هر ګروپ کې ۸ کوچنۍ ډبرې دي .

۳ ګروپونه د ۸ ۲۴ کېږي.

---

الف)

په هر ګروپ کې ______ دي.

______ ګروپونه د ______ ۲۴ کېږي.

ب)
په هر گروپ کې ______ دي.
______ گروپونه د ______ ۲۴ کېږي.

ج)
په هر گروپ کې ______ دي.
______ گروپونه د ______ ۲۴ کېږي.

درېيم فعاليت: هلكان ۱۸ دانې توته لري.
هغوی، توت په مساوي توگه ووېشل.
هر هلک څودانې توته په لاس راوړل؟
هر هلک ٦ دانې توته په لاس راوړل.




۱۲ تنه په ۳ قالينوكې گډ دي.
نوپه يوې قالينې كې به څوتنه گډ وي.



۴ تنه په هره قالينې کې

الف) ۸ هلكان په دوو مېزوكې گډ دي
په هر مېز كې څو هلكان دي؟

______ هلكان په هرمېز كې

ب) ۵ هلكان په ۱۰ پنسلونو كې گډ دي. هر هلک ته څو پنسلونه رسېږي؟
______ پنسلونه د هر هلک لپاره.

ج) ۴ هلكان په۱٦ بالونوكې گډ دي، هر هلک ته څو بالونه رسېږي؟
______ بالونونه د هر هلک لپاره

**كورنۍ دنده:** ښوونكی ۱۲ قلمونه ٦ زده كوونكو بخش وركړل هر زده كوونكي تـــه څوقلمونه رسېږي.

## درې پنځوسم لوست

### د ویش مفهوم

هدف: زده کوونکي به د تقسیم په مفهوم وپوهېږي او دتقسیم عملیه تر سره کړي.

د یوه شي جلا کول په څو مساوي برخو د تقسیم په نامه یـــادېږي. دا ( ⟌ ، ÷ ) دتقسیم نښې دي .

که چېرې په یوه پطنوس کې ۸ دانې منې ولرو او هغه په دووبشقابو کـــې وویشو په هر بشقاب کې ۴ دانې منې راځي؟



موږ په ریاضي کې د منو دتقسیم عملیه چې په دوو مساوي برخـــو وېشل کېږي داسې لیکو

$۸ \div ۲ = ۴$ (مقسوم ÷ مقسوم علیه = د ویش حاصل)

پورته افاده داسې لوستل کېږي، اته تقسیم پر دوو مساوي له څلـــورو سره په همدې ډول په لاندې چوکاټ کې ۱۲ دانې ناکه شته دي. که چېرې هغه په ۳ مساوي برخو جلا کړو په هر کوچني چوکاټ کې ۴ دانې ناکه حاصلېږي؟




په ریاضي کې د۱۲ ناکو دتقسیم عملیه، چې په دریومساوي برخو وېشـــل کېـــږي داسې لیکو:

$۱۲ \div ۳ = ۴$ (مقسوم ÷ مقسوم علیه = دویش حاصل)

**لومړی فعالیت:**

**۵ هلکان په ۱۵ مریوکې ګډ دي. هر هلک څومرۍ په لاس راوړي؟**

**لومړۍ مرحلۀ: ۵ ګروپونه وښایاست.**



**دوهمه مرحلۀ: یوه، یوه مرۍ وهرګروپ ته ورکړئ.**



**دریمه مرحلۀ: تر هغه پورې دوام ورکړئ، ترڅو چې مرۍ خلاصې شي.**



**۱۵ تقسیم پر ۵ مساوي له ۳ سره** $\quad ۱۵ \div ۵ = ۳$

**۱۵ مرۍ چې په ۵ ګروپونو تقسیم شي هر ګروپ ته ۳ مرۍ رسېږي.**

---

**دویم فعالیت: په جوړه یې توګه کار وکړئ. دمساوي ګروپونو د جوړولو لپاره کوچنۍ ډبرې استعمال کړئ. عبارتي پوښتنې ولیکئ او حل یې کړئ.**

**دوه هلکان په ۱۰ بالونوکې ګډ دي، وهر هلک ته څو بالونونه رسېږي.**



**۱۰ ÷ ۲ = ۵**

**۱۶ مرۍ د غاړې په ۲ امیلو باندې وویشئ**

**_____ ÷ _____ = ______**

---

**۹ داني دګېلاس میوه په ۳بشقابونو کې په مساوي ډول کېږدئ.**



**____ ÷ ______ = _____**

**۱۲چوغکې د ونې په ۲ ښاخو باندې وویشئ هر ښاخ به څو چوغکې ولري؟**

**____÷ ______ = _____**

۸ ګوډي پرانه د۲ هلکانو تر منځ ګډ دي، هریوه ته څو ګوډي پرانه رسېږي؟

---- ÷ ------- = ------

۳ هلکان په ۱۵ موټرګیوکې ګډ دي، هر هلک ته څو موټرګیه رسېږي.

--- ÷ ------- = ------

۲۰ قلمه تباشیر په ۴ چوکاټونوکې په مساوي ډول ووېشئ

-----÷ ------- = ----

۵ کڅوړې ۲۵ مرۍ لري هره کڅوړه به څو مرۍ ولري؟

----- ÷ ------- = ------

۱۲هلکان په۳ زانګوګانوکې لوبې کوي په هره زانګوکې څوهلکان لوبې کوي؟ څومرغۍ

----÷ ----- = -----

۹ مرغۍ په ۳ ښاخونوکې په مساوي ډول ناستې دي، نو په هر ښاخ کې څو مرغۍ ناستې دي؟

---- ÷ ------- = ------

**کورنۍ دنده:**

۱- ادریس ۱۸ بوتله اوبه لري، که چېرې خپل هر ټولیګوال ته ۲ بوتله اوبه ورکړئ. د ادریس د ټولیګوالو شمېر معلوم کړئ؟

د ادریس ټولیګوال ------ = ------- ÷ ----

۲– حیدر ۱۴ منې لري، که چیرې هغه ۷ منې هر ورو ته ورکړي، د ورونو شمیر به یې څو وي.

**فعالیت: د پوښتنود صحیح حل په شاوخوا باندې دایره وکاږئ.**

**په یوه ډګر کې ٦ خیمې دي چې د هرې خېمې په دننه کې۳ هلکان دي.**

**هلته ټوله څو هلکان دي؟**






٦ ÷ ۳ = ۲     ٦ × ۳ = ۱۸     ٦ − ۳ = ۳

---



۲ هلکان په لوبغالي کې قدم وهي.

۳ هلکان نور له هغو سره یوځای کېږي.

اوس څو هلکان قدم وهي؟

۲ × ۳ = ٦     ۳ − ۲ = ۱     ۲ + ۳ = ۵

---

۵ هلکان کبان نیسي.



اوهر هلک ۳ کبان ونیول

هلکانو ټول څو کبان نېولي دي؟

۵ × ۳ = ۱۵     ۵ − ۳ = ۲     ۱۵ ÷ ۳ = ۵



۵ هلکان ۱۰ دانې ژاولې په مساوي ډول وېشي.
هر هلک ته څو دانې ژاولې رسېږي؟

۱۰ + ۵ = ۱۵  ۱۰ ÷ ۵ = ۲  ۲ × ۵ = ۱۰



۸ هلکان د اور په شاوخوا باندې ناست دي. ۲ هلکان له هغوی څخه کورته ځي.
اوس څو هلکان د اور پر شاوخوا ناست دي؟

۸ + ۲ = ۱۰  ۸ ÷۲ = ۴  ۸ − ۲ = ٦



۱۰ هلکان غواړي چې په يوه سفر کې له ۵ بايسکلونوڅخه په مساوي توگه کار واخلي، په يوه بايسکل کې څو هلکان شريک کېږي؟

۱۰ ÷ ۵ = ۲  ۱۰ + ۵ =۱۵  ۱۰ − ۵ = ۵

**کورنۍ دنده: لاندې سوالونه حل کړئ**

۴ × ۲ =  ۱۵ ÷ ۲ =

۱۲ ÷ ۲ =  ۱۸ ÷ ۳ =

۱۷ − ۹ =

$$\begin{array}{r} ۱۳ \\ \times\ ۲ \\ \hline \end{array}$$

## د ضرب او تقسیم مشق او تمرین




یوځای کار وکړئ او تمرینونه حل کړئ.

ویې لیکئ څومره؟



___ + ___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___



___ + ___ + ___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___



___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___



___ + ___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___



___ + ___ + ___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___



___ + ___ + ___ = ___

___ گروپونه د ___ = ___

د وړکړی شوي ضرب له نظره کوچنۍ مربع ګانې رنګه کـــړئ او د ضـــرب حاصل يې ووايئ.



۴× ۲ = ___



۲ ×۴ = ___



۵× ۳ = ___



۳ ×۵ = ___

ضرب يې کړئ.

| ۴۳ | ۲۵ | ۳۴ | ۲۳ | ۱۶ | ۱۷ |
|---|---|---|---|---|---|
| × ۲ | × ۴ | × ۲ | × ۳ | × ۲ | × ۲ |

په ګروپي ډول کار وکړئ، ۱۲ کوچنۍ ډبرې استعمال کړئ، افاده جوړه کړئ بيايې جمع او تقسيم کړئ.

په هر ګروپ کې ___ کوچنۍ ډبرې دي.

او ___ ګروپونه د ___ په ۱۲ کې شته

په هر ګروپ کې ___ کوچنۍ ډبرې دي.

___ ګروپونه د ___ په ۱۲ کې دي.

دکوچنيو ډبرو څخه مساوي ګروپونه جوړ کړئ، رسم يې کړئ.

**کورنۍ دنده:**

۱ – ۱٦چوغکې په ۲ښاخو باندې ناستې دي. په هرښاخ باندې څوچوغکې شتون لري

___ = ___ ÷ ___

۲ – ۴ کڅوړې ۱٦ مرۍ لري.

هره کڅوړه څو مرۍ لري؟

___ = ___ ÷ ___

## څلور پنځوسم لوست

# د ضرب او تقسیم تر منځ اړیکې

هدف: زده کوونکي به پوه شي که چېرې مقسوم په مقسوم علیه باندې تقسیم شي دتقسیم حاصل لاس ته راځي اوکه چېرې مقسوم علیه دتقسیم له حاصل سره ضرب شي مقسوم لاس ته راځي او دا دتقسیم اوضرب ترمنځ یوه رابطه ده.

لاندې شکل څلور بشقابه منې دي چې په هربشقاب کې دوه، دوه دانې منې دي.




د ټولو منو شمېر ۸ = ۲ × ۴ دي.

اوس که چېرې ۸ دانې منې په ۴ بشقابوکې وویشو په هر بشقاب کې ۲ دانـــې منې راځي یعنې:




$۸ \div ۴ = ۲$

په همدې ډول که چېرې ۸ دانې منې په ۲ بشقابوکې وویشو.




$۸ \div ۲ = ۴$

$۴ \times ۲ = ۸$

لیدل کېږي چې په هربشقاب کې ۴ داني منې دي، نو ویلای شو. که چېرې مقسوم په مقسوم علیه باندې ووېشل شي د وېش حاصل په لاس راځي او که چېرې مقسوم علیه د وېش له حاصل سره ضرب شي مقسوم په لاس راځي.

مثال: $۶ \div ۳ = ۲$ $\quad$ $۶ \div ۲ = ۳$ $\quad$ $۳ \times ۲ = ۶$

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي د ې لاندې سوالونه حل کړي د هغوی ترمنځ رابطه دې پیدا کړي.

$۴ \times ۶ = ?$ ، $۲۴ \div ۶ = ?$ ، $۲۴ \div ۴ = ?$

$۵ \times ۴ = ?$ ، $۲۰ \div ۴ = ?$ ، $۲۰ \div ۵ = ?$

## پنځه پنځوسم لوست

# د یوه عدد وېشل په خپل عدد باندې

هدف: زده کوونکي به د دې لوست له زده کړې وروسته پوه شي که چېرې یو عدد په خپل ځان ووېشل شي پایله یې (۱)ده.

په یوه بشقاب کې ۳ داني منې دي، فرهاد هغه پــه ۳ کوچنیــو بشــقابونو کې وېشي لیدل کېږي چې په هر بشقاب کې یوه دانه منه راځي.



پورتنی وېشنه په ریاضي کې داسې لیکل کېږي.

۳ | ۳
−۳ | ۱
۰

۳ ÷ ۳ = ۱ یا

نو ویلای شو هر عدد چې په خپل ځان ووېشل شي د هغــه حاصــل (خــارج قسمت) یو دی، نو لیکلای شو چې:

۴ ÷ ۴ = ۱ ۱ ÷ ۱ = ۱

۵ ÷ ۵ = ۱ ۲ ÷ ۲ = ۱

۳ ÷ ۳ = ۱

**تمرین:** لاندې پوښتنې حل کړئ.

۷ ÷ ۷ = ? ۹ ÷ ۹ = ? ۶ ÷ ۶ = ? ۸ ÷ ۸ = ?

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي د ې لاندې سوالونه حل کړي له ځان سره دې راوړي.?

۳۲ ÷ ۳۲ = ? ۱۰ ÷ ۱۰ = ? ۱۴ ÷ ۱۴ = ? ۲۸ ÷ ۲۸ =?

## شپږ پنځوسم لوست

## د یوه عدد وېشل په (۱) باندې

هدف: زده کوونکي به پوه شي هر عدد چې په (۱) باندې وویشل شي نتیجه یې په خپله هم هغه عدد ده.

گرانو زده کوونکو! تاسو هر یو خپل ټولگیوال ته ۲ ټوکه کتابچې ورکړئ او ووایاست چې ستاسو د هر یوه ټولیگوال په لاس کې څو ټوکه کتابچې دي. حتمي ستاسو ځواب (۲) دی چې په حقیقت کې د یوه عدد وېشل په (۱) ده. د دې عمل ریاضي شکل یې داسې لیکو.

$$\begin{array}{r|l} ۲ & ۱ \\ \hline -۲ & ۲ \\ \hline ۰ & \end{array}$$

یا ۲ ÷ ۱ = ۲

په همدې ډول که چېرې شریف خپل ۳ دانې قلمونه خپلې یوې خور نازي ته ور وبخښي، ویلای شئ چې نازي به څو قلمونه ولري؟ ددې پوښتنې په ځواب تاسو ټول پوهېږئ چې نازي ۳ قلمونه لري چې دا عمل هم د یوه عدد وېشل په (۱) باندې دی. د دې تقسیم د ریاضي شکل داسې دی. ۳ ÷ ۱ =۳

له دې مثالونو څخه پوهېدای شو هر عدد چې په (۱) باندې ووېشل شي، د وېش حاصل یې په خپله هم هغه عدد دی.

نو لیکلای شو چې:

۲ ÷ ۱ = ۲

۳ ÷ ۱ = ۳

۴ ÷ ۱ = ۴

۵ ÷ ۱ = ۵

تمرین: لاندې پوښتنو ته شفاهي ځوابونه ووایاست.

۸ ÷ ۱ = ?　　　۶ ÷ ۱ = ?

۹ ÷ ۱ = ?　　　۷ ÷ ۱ = ?

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې لاندې سوالونه حل کړي له ځان سره دې راوړي.

۴ ÷ ۱ =?　　۸ ÷ ۱ = ?　　۹ ÷ ۱ =?　　۲ ÷ ۱ = ?

## اتم فصل
## د اندازه کولو واحدونه

### اووه پنځوسم لوست

### غیر معیاري واحدونه

**هدف**: زده کوونکي به په دې پوه شي چې په پخوا وختوکې د شیانو اوږدوالی په څه شي اندازه کېده او هغوی د اوږدوالي معیاري واحد دپېژندلو لپاره چمتو کړئ.

فعالیت: په خپل ټولګي کې د اندازې نیولو لپاره یو شی وټاکئ د هغه جګوالی او یـــا اوږدوالـــي اندازه کړئ.



د اندازې نیولو یو واحد وټاکئ.



عیني شی په یوه بل واحد سره اندازه کړئ ا و چارټ بشپړ کړئ.

| | زه څه شی اندازه کوم؟ | داندازه کولو واحد | اندازه نیول |
|---|---|---|---|
| ۱ | ور | دزده کوونکي لوېشت | کابو ۲۰ لوېشتې |
| ۲ | ___________ | ___________ | کابو ___________ |
| ۳ | ___________ | ___________ | کابو ___________ |

**کورنۍ دنده:** د خپل ورور او خور قدونه د لوېشت او پنسل په واسطه انـــدازه کړئ، او ووایاست چې هر یو څومره قد لري؟ څو لوېشتې یا څو پنسلونه؟

## اته پنځوسم لوست

### معیاري واحدونه (متر، سانتي متر او ملي متر)

هدف: زده کوونکي به دمعیاري واحدونو په ګټې اوپه ورځنې ژوند کې دهغو داستعمالولو په طریقه پوه شي.

**متر:** د شیانو اوږدوالی په متر سره اندازه کېږي چې یومنل شوې معیاري اندازه ده. مثلاً د ټوکر اوږدوالی، د درې اوږدوالی، ستاسو د ټولګي اوږدوالی... په متر سره اندازه کېږي. لاندې شکل د یوه متر نمونه ده. یو متر په سلو مساوي برخو وېشل شوی دی او د هغه هرې برخې ته سانتي متر وايي یعنې:




**خط کش:** کوچنی اولنډ اوږدوالی د خط کش په واسطه اندازه کېږي. تاسو کولای شئ د خپل کتاب اوږدوالی او بر د خط کش په واسطه اندازه کړئ. په همدې ډول کولای شئ د خپل قلم اوږدوالی دخط کش په واسطه اندازه کړئ چې څو سانتي متره کیږي.

دا یو خط کش دی او ۱۰ سانتي متره اوږدوالی لري.




د خپلې لوښتې اندازه د خط کش په واسطه معلومه کړئ او ووایاست چې څو سانتي متره دی؟

ز ه له یو متر څخه اوږد یم.

۱ متر ۱۰ دیسي متره کېږي.

۱ متر ۱۰۰ سانتي متره کېږي.

۱ متر ۱۰۰۰ ملي متره کېږي.







د خپل یوه ملګري سره یوځای کار وکړئ.

اوږدوالي په سانتي متره، اومتر سره تخمین او وروسته یې اندازه کړئ ———

| | د لاندې شیانو اندازه اخیستل | تخمیني | اندازه نیول |
|---|---|---|---|
| ۱ | له سر څخه د پښو ترګوتو پورې | کابو ——— متره | ——— متره |
| ۲ | ستاسو د مېزجګوالی | کابو ——— متره | ——— متره |
| ۳ | د ټولګي اوږدوالی | کابو ——— متره | ——— متره |
| ۴ | د ټولګي د بر واټن | کابو ——— متره | ——— متره |
| ۵ | د ټولګي د څلورو خواو اندازه | کابو ——— متره | ——— متره |
| ۶ | ستاسو د څوکۍ اوږدوالی | کابو ——— متره | ——— متره |
| ۷ | ستاسو د ټولګي د ور لوړوالی | کابو ——— متره | ——— متره |

**کورنۍ دنده:**

د خیاطي یو متر واخلئ دهغه پواسطه د خپل کور پنځه شیان اندازه کړئ او ۵ خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

## نهه پنځوسم لوست

## د خط کش په واسطه د ټوټه خطونو د اوږدوالي اندازه کول

هدف:زده کوونکي دلوست په پای کې وکړای شي خپل قطعه خط د خط کش پواسطه اندازه کړي.

ګرانو زده کوونکو! تاسو په تېرو لوستونوکې د خط کش له نامه سره بلـــد شوي یاست او پوهېږئ چې د لنډ اوږدوالي د اندازه کولو لپاره په کار وړل کېږي، مثلاً که چېرې وغواړو د یوه پنسل اوږدوالی اندازه  کړو، د خـــط کش د صفر ټکی (نقطه) د پنسل په یوه سر باندې ږدو، وینو چې د قلم بل سر د خط کش له کومې درجې سره مطابقت کوي، څرنګه چې د پنسل بل سر د ۱۰ له عدد سره مطابقت کوي، نو وایو چې د پنسل قلم اوږدالي یـــا اندازه ۱۰ سانتي متره دی.




په همدې ډول دا یوټوټه خط دی. د دې ټوټه خط اندازه یا اوږدوالی څرنګه  چې د پنسل اوږدوالی مو معلوم کړی، په هم هغه ډول یې اندازه کوو لیدل کېږي چې دنوموړي ټوټه خط اوږدوالی ۵ سانتي متره یا ۵۰ ملي متره دی.




که چېرې وغواړو چې یو خط د ۴۰ ملي مترو په اوږدالي رسم کړو د دې ټوټه خط اوږدوالي په څو سانتي مترو سره دخط کش په مخ په نښه کوو.

د خپل یوه ملګري سره یوځای کار وکړئ، یو خط کش اســـتعمال کـــړئ او پوښتنو ته ځوابونه ووایاست.

۱– یو سانتي متر څو ملي متره کېږي؟

یو سانتي متر ______ ملي متره کېږي.

۲– ۲ سانتي متره څو ملي متره کېږي؟

۲ سانتي متره ______ ملي متره کېږي.

۳.   ۳ سانتي متره څو ملي متره کېږي؟

۳سانتي متره ______ ملي متره کېږي.

۴.   ۴۰ ملي  متره څو سانتي متره کېږي؟

۴۰ ملي متره ______  سانتي متره کېږي.

۵.   ۱۵ ملي متره څو سانتي متره کېږي؟

۱۵ ملي متره ______  سانتي متره او________ ملي متره کېږي.

## تمرين

لاندې ټوټه خطونه د خط کش په واسطه اندازه کړئ او ووایاست چې هر یو یې څو سانتي متره او څو ملي متره دي؟



## نهم فصل (هندسه)

### شپیتم لوست

### د هندسي شکلونو پېژندنه

هدف: زده کوونکي دې هندسي شکلونه وپېژني او نومونه يې وويلای شي.















### فعاليت:

۱– د(سړه کئ) په شکل کې مستطيل، مربع، دايره او مثلث وښاياست.

۲– په پورتنيو شکلونو کې څومستطيلونه، څو مربع گانې، څـو دايـري او څو مثلثونه ليداي شئ؟

۳– په مخامخ شکل کې څو مثلثونه، څو مربع گانې، څو دايري او څو مستطيلونه دي؟ ويېښاياست؟



۴- شکلونوته مخامخ نومونه شته دي، تاسو يې خپلو کتابچو ته نقل کــړئ. د يوه تير په واسطه شکل د اړوند نامه سره ونښلوئ، گوټونه (کنج) او ضلعې يې وښاياست.



**۵ – په لاندې هندسي شکلونو کې د مربع گانو، مستطيلونو، دايـــرو او مثلث شمېر پيداکړئ.**



**کورنۍ دنده:**

**د خپل کور په چاپېريال (محيط) کې کوم شيان دايروي شکل، کوم شـــيان مثلث شکل، کوم شيان مستطيل شکل او کوم شيان مربع شکل وينئ د هغو نومونه واخلئ.**

## یو شپېتم لوست

# محیط

هدف: زده کوونکي د خط کش په کارونی سره د هندسي شکلونو محیط پیدا کړئ.

د یوه شکل ګرد چاپېرواټن دهماهغه شکل دمحیط په نامه یادېږي.



۲۱ سانتي متره = ۲ + ۳ + ۴ + ۴ + ۸

محیط = ۲۱ سانتي متره

وار ونیسئ دخنډو د اوږدوالي اندازه جمع کړئ، ترڅو محیط پیداکړئ.

۱.

ګردچاپیره ____ سانتي متره

محیط= ____ سانتي متره

۲.

ګردچاپیره ___ سانتي متره

محیط= ___ سانتي متره

۳.




۴.




۵ . په خپله خوښه یو شکل رسم کړئ، وروسته يې محیط په سانتي متر ســـره اندازه کړئ.

**کورنۍ دنده:** په کورکې دوه شکله پیداکړئ اودهغو محیط انـــدازه کـــړئ او خپلې نتیجې په ټولګي کې ووایاست.

# لسم فصل
# په عملي توگه د کسر پیژندل

### دوه شپیتم لوست

## په هندسي شکلونوکې کسر

هدف: زده کوونکي به په هندسي شکلونو کې کسرونه وپیژني.

### مساوي او نامساوي برخې

برخې په عیني اندازه نه دي.



دا مساوي برخې نه دي.

برخې په عیني اندازه دي.



دا مساوي برخې دي.

لومړی فعالیت: لاندې هر یو شکل په څو برخو وېشل شوی دی، کوم شکلونه په مساوي برخــو او کوم شکلونه په نامساوي برخو وېشل شوی دی. لست یې کړئ له مثال څخه کار واخلئ.

برخې ۲

نا مساوي

مساوي



۱شکل

برخې ۳

مساوي

نا مساوي



۲شکل

برخې ___

مساوي

نا مساوي



۳شکل

برخې ___

مساوي

نا مساوي



۴شکل

برخې ___

مساوي

نا مساوي



۵شکل

برخې ___

مساوي

نا مساوي



۶شکل

برخې ___

مساوي

نا مساوي



۷شکل

برخې ___

مساوي

نامساوي



۸شکل

**دویم فعالیت:** مساوي برخې رسم کړئ او هره برخه په مختلف رنګ سره رنګ کړئ.

۹.



۴ مساوي برخې

۱۰.



۳ مساوي برخې



۶ مساوي برخې



۸ مساوي برخې



۲مساوي برخې



۲ مساوي برخې

**کورنۍ دنده:** غوښتنه یي شوی ده، مثالونه په درسې مساوي برخو چې وویشئ.



۴ مثلث جوړکړئ.



۴ مستطیلونه جوړ کړئ.



۴ مربع ګانې جوړې کړئ.

چې مربع نه وي.









دا منه په دوو مساوي برخو وېشل شوې ده
هره برخه د منې یوه، دویم برخه جوړه وي
اوهرې برخې ته یو دویم $\frac{1}{2}$ وایي.

## دا یو مثلث دی.



**دمثلث نیمایي یا دمثلث ۱/۲ برخه**

**د مثلث نیمایي یا د مثلث ۱/۲ برخه**



---

**دایوه مربع ده**



**دریمه برخه یا ۱/۳ برخه**



دامربع په دري مساوي برخووېشل شوې ده.
هره برخه دټولې مربع دریمه برخه جوړه وي.

---

**دا یو مستطیل ده.**



**دمستطیل څلورمه برخه یا ( ۱/۴ ) برخه دمستطیل**



دامستطیل دی. په څلورو مساوي برخو وېشل شوی دی، هره برخه د مستطیل څلورمه برخه جوړه وي.

**دا یوه دایره ده**



**ددایرې نیمایي یا ددایرې (۱/۲) برخه**

**ددایرې نیمایي**



دا یوه دایره ده اوپه دوو مساوي برخو وېشل شوې ده، هر یوه د دې دوو برخو څخه یوه دویمه برخه د دایرې بلل کېږي.

# درى شپېتم لوست

## د یوه کسري برخې ښوونه

هدف: زده کوونکي به پوه شي چې یو شی په څو مساوي برخو وېشل شوی دی، یوه برخه یې په کسري شکل ولیکي او هم سرچپه یې یوڅوومه برخه په شکل کې وښودلی شي.




شنه رنګه مربع یوه څلورمه ده




شنه رنګه مربع یوه دریمه




شنه رنګه مربع نیمایي یا یوه دویمه ده

**فعالیت:**

۱. نیمایي یې رنګ کړی.

۲. یو دریمه یې رنګ کړئ.

۳. یو دریمه یې رنګ کړئ.

۴. څلور واړه خانې یې رنګ کړئ.

۵.




رنګ شوی برخه
۴ مساوي برخو

$\frac{۱}{۴}$




۱ برخه رنګ شوی
۳ مساوي برخو

$\frac{۱}{۳}$




۱ برخه رنګ شوی
۲ مساوي برخو

کسری خط (دبرخط)

$\frac{۱}{۲}$

مشق اوتمرین: لاندې جدول بشپړ کړئ، د حل شوي مثال څخه کار واخلئ.

| دکسر رنګ شوې برخې ولیکئ | رسم | مساوي برخې |
|---|---|---|
| ۱- $\frac{1}{4}$ دمساوي برخو څخه یوه یوه برخه رنګ شوې ده یا دشکل څلورمه برخه رنګ شوې ده. | | ۴ |
| ۲- | | |
| ۳- | | |
| | | |

په لاندې شکلونوکې د رنګ شوو برخو اړوند کسر ولیکئ.

۴-

۵-

کورنۍ دنده: